په مورنۍ ژبه کښې د موضوع حدیثونو په باره کښې ړومبنې کتاب

# الاغطية المكشوفه

## عَنِ الْاَحَادِيْثِ الْمَوْضُوْعَة






لیکونکی

**قاضی محمد فاضل عظیم زئی**

مهتمم مدرسه عربیه اِسلامیه دار العلوم الباقیات الصالحات

سلطان آباد، آدینه، رزړ، صوابی، خیبر پختونخوا (پاکستان)

په مورنئ ژبه کښې د موضوع احادیثوپه باره کښې ړومبنې کتاب

# اَلاغطية المكشُوفَة

## عَنِ الْاَحَادِيْثِ الْمَوْضُوْعَة




لیکونکی

**قاضی محمد فاضل عظیم زئی**

مهتمم مدرسه عربیه اِسلامیه دارالعلوم الباقیات الصالحات

سلطان آباد، آدینه، رزړ، صوابی، خیبر پختونخوا (پاکستان)

# الاغطية المكشوفة عن الاحاديث الموضوعة

مفتی قاضی محمد فاضل عظیم زئی

## د کتاب ځانګړني:


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | اَلاغطية المكشُوفَةُ عنِ الاحَاديثِ المَوضُوعَة |
| لیکونکي: | مفتی قاضی محمد فاضل عظیم زئ جدون |
| ځیر کتنه: | مولانا ډاکټر محمد قاسم آمین عظیم زئ |
| د کاتب نوم: | حافِظ حارِث سعید عظیم زئ |
| ډیزائن کونکي: | حافِظ حارث سعید عظیم زئي |
| ټول مخونه: | اته نوی (۹۸) |
| د چاپ کال: | ۱۴۴۵ ھ بمطابق ۲۰۲۴ء |
| د چاپ چارې: | عظیم زئ پرنټنګ سروس ادینه (صوابی) |
| شمیر: | یو زر (۱۰۰۰) |


## د موندلو درکونه:

* دار العلوم الباقیات الصالحات، ادینه، ضلع صوابی
* هر نزدې لوې کتابتون

**عظیم زئې پرنټنګ سروس آدینه صوابي**

0301-8355005





# تړون

## د جنابِ رسول الله ﷺ په نامه

دچا په باره کښي چه ارشاد رباني دے

وَمَا يَنطِقُ عَنِ الهَوىٰ



# فهرست

## ❀تقريظ از ډاکټر سراج الاسلام حنيف دامت برکاتهم العاليه❀

إن الحمد لله ، نحمده ونستعينه ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ، ومن سيات أعمالنا من يهده الله فلا مضل له ومن يضلل فلا هادي له ، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له وأشهد أن محمدا عبده و رسوله.

يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ حَقَّ تُقَتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ [ سورة آل عمران ٣:١٠٢]

يَأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا.

[ سورة النساء :١]

يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلاً سَدِيدًا يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَ رَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا [ سورة الاحزاب ٣٣:٧٠-٧١ ]

أما بعد!

**ما د خپل خورئ مولانا محمد فاضل صاحب ادينوی حَفِظَهُ الله تعالیٰ جمع کړے شوے رساله "الاغطية المكشوفه عن الاحاديث الموضوعه" ، اولوستله د الله په فضل يو ډير ښه محنت ئے کړے دے خو زما دوی ته مشوره داده چه دا سلسله دی وړاندی هم جاری اوساتی او نبی کريم ته منسوب هغه روايتونه دے نور هم را جمع کړی کوم چه په عوامو او خواصو کښ مشهور بلکه په بعضی کتابونو کښ هم ليکلی شوی دی او بعضی ناپوهه خلق د هغی نه عقيدے ثوابونه اوفضيلتونه ثابتوی.**

**الله تعالیٰ دے دا نيک عمل د هغه نه قبول کړی .** اللهم آمين .

ډاکټر ابو سلمان سراج الاسلام حنيف

١٨ نومبر ٢٠٢٢ ء

## ❀تقريظ از مفتي رضاء الحق شاه منصوري دامت بركاتهم العاليه❀

نحمده و نصلي على رسوله الكريم وعلى اله وصحبه ومن تبعهم الداعين الى الدين القيوم الصراط المستقيم، اما بعد !

د عربۍ ژبې لمن د موضوعي يا متروكو احاديثو نه ډكه ده هم دغسې په اردو ژبه كښې هم په دے سلسله كښې ډير كتابونه ليكلي شوے دي خو د پښتو ژبے لمن دد ے فن د بيانولو نه خالي ده الا ماشاء الله۔

قاضي مفتي مولانا محمد فاضل عظيم زئي جدون صاحب حفظه الله تعالىٰ په دے سلسله كښې ''الاغطية المكشوفه عن الاحاديث الموضوعه'' نومې رساله اوليكله ۔ ما ځائے په ځائے دا رساله اولوسته مؤلف په آسانه ژبه كښې دا رساله ليكلے ده۔ الله تعالىٰ دِ دا رساله قبوله او مقبوله اوګرځي او د مصنف د پاره د ے صدقه جاريه اوګرځي او په خپله مورنۍ ژبه كښې دِ ورله الله تعالىٰ د نور خدمت توفيق وركړي۔

رضاء الحق عفا الله عنه
شاه منصور
٢ شوال ١٤٤٥ھ

مفتي رضاء الحق شاه منصوری

٢ شوال ١٤٤٥ھ

# ❀ دَ سر ټکی ❀

الحمد لله الذی انزل القرآن العظیم القدیم،وبینه بالاحادیث الثابتة عن النبی الکریم،بنقل الصحابة و التابعین،واتباعهم من ائمة الدین المجتهدین فی الطریق القویم وصلی ا لله تعالیٰ علیٰ خیرخلقه محمدوآله و اصحابه اجمعین۔

امابعد دَ دین اسلام اصل بنیاد په قرآن کریم او حدیث نبوی ﷺ باندِ ایښے شوے دے۔ دَ قرآن مجید دحفاظت ذمه داري الله تعالیٰ په خپله ذمه اخستے ده۔ دَ احادیث نبویه حفاظت چونکه الله تعالیٰ په خپله ذمه نه دے اخستے۔دغه وجه ده چه په احادیثو کښی وخت په وخت مختلفو طریقو سره دَ ځان نه روایتونه جوړ کړے شوی اوجناب رسول الله ﷺ ته منسوب کړے شوی دی۔

اکثرناپوهه واعظان، خطیبان،صوفیان اومبلغین حضرات په خپل بیان کښی دَ خوند پیدا کولو او دَ عوامو دَ متوجه کولو دَ پاره دغه روایات بیانوی ۔ علمائے کرامو په دے حوالے سره خپله ذمه داری سر ته رسولے ده او په بیلو بیلو ژبو کښی ئے د موضوع او من ګهړت روایاتو مخ نیوے اوکړو، خو په پښتو ژبه کښي لا تر اوسه دَ دے کمے محسوسیږی۔

زمونږ بعض پختانه ورونړه اوخوئیندے د خپلے مورنۍ ژبے نه علاوه په بله ژبه نه پوهیږی، په دے وجه مادد‌غ خلقودپاره په اسانه اوروانه پښتو ژبه کښی دموضوع روایاتو په حواله بنیادی خبرے په ګوته کړے چه زمونږ پختون اولس کښی په دے حوالے سره بیداری راپیداشی اود خپلو مجلسونو

او کتابونو نه موضوع روایتونه ختم کړی،اوخپل ژونددشریعت مطابق کړی۔

الله تعالیٰ دی دامختصره رساله زمونږ دَ ټولو دَ پاره دَ دُنیا او دَ آخرت دَ خوشحالئ سبب اوذریعه اوګرځوی اوددےفائدے دے دپختون اولس د پاره عامے کړی۔

آمین یارب العٰلمین

(قاضی)محمد فاضل عظیم زئ

خادم دارالعلوم الباقیات الصالحات ادینه

تحصیل رزړ،ضلع صوابی

## ❀ موضوع حديث څه ته وائی؟ ❀

(ا) لغوی تعریف: په لغت کښې موضوع د وَضَعَ، یَضَعُ باب فَتَحَ، یَفتَحُ نه داسم مفعول صیغه ده۔چه دهغے مصدر (وَضعٌ) دے۔چه معنی ئې ده:ذلیله کول،په ځمکه باندې ګزارورکول،دځان نه خبره جوړول،کتاب تالیف کول۔

(مصباح اللغات،ص ۹۵۱،ازمولاناعبدالحفیظ بلیاوی،مکتبة الحرمین)

دغه شان علامه جوهری لیکلی دي چه د وضع معنی ارتاؤل دی۔

د"وَضَعتُ الشئ من یدی وضعاً"۔معنی ده ماپه خپل لاس باندې یوڅیز ارتاؤ کړو۔ (مختارالصحاح، ج۳،ص ۵۹۷)

القاموس المحیط کښې لیکلے شوے دی چه "الوضع هوالافتراءوالاختلاق یقال وضع فلان القصة ای اختلقهاوافتراها" (جلد ۳، صفحه ۹۴)

وضع دځان نه(په دروغه)جوړشوے اوبے بنیاده خبروته وائی۔وئیلی کیږی چه فلانی قصه جوړه کړه یعنی دروغ ئے اوتپل۔

علامه ابن حجرعسقلانی رحمه الله دموضوع لغوی وضاحت متعلق لیکلی دی چه"وامامن حیث اللغة فقدقال ابوالخطاب ابن دحیه الموضوع الملصق والاسقاط"۔ (النکت،جلد۲،صفحه ۸۳۸)

چه ترکومه حده پورے دلغوی معنی تعلق دے۔نوابوخطاب بن دحیه فرمائیلی دی چه د موضوع معنی چاته دغلطی خبری نسبت کول دی۔وئیلے شی چه فلانی په فلانی باندې وضع کړےده یعنی په هغه ئےدروغ جوړ کړے دی۔ددے معنیٰ ویشتل اوارتاؤل هم ده۔

## په قرآن مجيد کښې د لفظ وضع استعمال:

په قرآن مجيد کښې دَ "وضع" لفظ په مختلفو معنو کښې استعمال کړے شوے دے۔ مثلاً:

1. اودرول يا پورته کول: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دى۔

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ (سورة الرحمٰن، آيت نمبر ۵)

ترجمه: او(الله تعالیٰ)آسمان پورته کړے دےاو تله د ميزان ئي اودرولے ده۔

2. پيدا کول يا ځيږول: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دى۔

قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ وَضَعْتُهَآ اُنْثٰى ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ۭ

(سورة آل عمران:۳۶)

ترجمه:(کله چه د هغے بچی پيدا شوه نو)او ئے وئيل چه اے ربه ما جينئ اوځيږوله او الله تعالیٰ ته پته ده چه دے څه ځيږولے وؤ۔

حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ كُرْهًا وَّوَضَعَتْهُ كُرْهًا ۭ (سورة الاحقاف15)

ترجمه: پورته کړے وؤ ده لره مورددہ په تکليف سره اوځيږولے ئے وؤ په تکليف سره۔

3. بوجھ پورته کول: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دى۔

وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ (سورة الم نشرح، آيت نمبر ۲)

ترجمه: او پورته کړے وؤ مونږ ستا نه بوجھ ستا۔

4. غوړول: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دى۔

وَالْاَرْضَ وَضَعَهَا لِلْاَنَامِ ۙ (سورۃ الرحمٰن، آیت نمبر ۱۰)

ترجمه: او غوړولې ئې ده زمکه د پاره د مخلوقاتو۔

5. اوباسل: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دی۔

وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ (سورۃ النور، آیت نمبر ۵۸)

ترجمه: او کله چه تاسو دغرمې (سیوائی) کپړې اوباسئ۔

6. جوړول: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دی۔

اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِیْ بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا (سورۃ ال عمران، آیت نمبر ۹۶)

ترجمه: بې شکه د ټولو نه ړومبني کور چه جوړ کړې شوې دې د پاره دعبادت د خلقو، په مکه مبارکه کښې دې۔

7. کيخودل: لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دی۔

وَّ اَكْوَابٌ مَّوْضُوْعَةٌ (سورۃ الغاشیه، آیت نمبر ۱۴)

ترجمه: او کوزې دی ايخې شوې۔

(ب) اصطلاحي تعريف: موضوع حديث هغې روايت ته وائي چه کوم د رسول الله ﷺ نه په هيڅ يو درجه کښې ثابت نه وی۔ بلکه خلقو د ځان نه په دروغه جوړ کړې وی۔ دعلم حديث خاوندانو د موضوع روايت تعريف په دې ډول کړې دې۔

"الحديث المختلق الموضوع المكذوب على رسول الله عمداً او خطاءً"

(تدريب الراوی: 323/1)

ترجمه: موضوع حديث هغه روايت ته وائي چه هغه د ځان نه جوړ شوې وی او په قصده يا په غلطئ سره په دروغه رسول الله ﷺ ته منسوب کړې شوې وی۔

امام نووی رحمه الله لیکلی دي چه:

هوالمختلق المصنوعُ (تقریب التهذیب:۱۱)

ترجمه: یعنی (موضوع حدیث) په دروغه دځان نه جوړ شوے وی۔

امام ذهبی رحمه الله د موضوع حدیث په حواله سره لیکی چه:

مَا كَانَ مَتنُہٗ مُخَالِفاً لِلقَوَاعِدِ وَ رُوِيَ رِوَايَۃً كِذَّاباً۔

(الموقظة فی علم مصطلح الحدیث ، صفحه ۳۶)

ترجمه: چه د کوم روایت متن دقواعدو خلاف وی، او چا په دروغه روایت کړے وی۔

## دموضوع روایت شرعی حیثیت:

دروغ یو داسے ناخوښه عمل دے چه په عام حالاتو او معاملاتو کښې ئے هم څوک نه خوښوی بلکه ټول قومونه او ملتونه ددے په ناراضګئ متفق دی۔ تر دے چه د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکښې د جهالت په دور کښې هم دروغوته سپک کتے شو۔ رسول الله ﷺ دروغ وئیل د منافقینو نخښه ګرځولے ده۔ لکه څنګه چه سیدنا ابو هریره رضی الله عنه روایت نقل کوی چه

"عن ابی هریرة رض قال آیة المنافق ثلاث اذاحدث کذب واذاوعد اخلف و اذااتمن خان ۔" (صحیح بخاری، کتاب الایمان، باب علامات المنافق، حدیث نمبر ۳۳)

ترجمه: دَ سیدنا ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه دمنافق درے نخښے دی کله چه دے خبرے کوی نو دروغ به وائی، کله چه دے وعده کوی نو خلاف ورزی به ئے کوی او کله چه ده سره امانت کیخودلے شی نو خیانت به پکښې کوی۔

دغه شان په قرآن کریم کښې ددروغو تذکره شوی ده بلکه دروغژن ته ډیر ظالم وئیلے شوے دی لکه څنګه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی:

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۔ (سورة الانعام : ۱۴۴)

ترجمه:پس څوک دے ډیرغټ ظالم د هغه چانه چه څوک په الله تعالیٰ باندِدروغ جوړوی، ددے د پاره چه خلق په ناپوهتیا سره بے لارے کړی۔ بے شکه الله تعالیٰ هدایت نه ورکوی قوم ظالم ته۔

ددے نه علاوه په نوروآیاتونوکښی هم ددروغومذمت بیان کړے شوےدے بلکه په دروغژن لعنت ویئلے شوے دے لکه څنګه چه ارشادِ باری تعالیٰ دے:" لَّعۡنَتَ اللّٰهِ عَلَى الۡكٰذِبِيۡنَ "(سورة ال عمران :۶۱)

ترجمه:په دروغژن باند د الله تعالیٰ لعنت دے۔

## په جناب رسول الله ﷺ باندِدَ دروغ جوړولو ګناه:

په شریعت کښی دروغ وئیل هسے هم لویه ګناه ده بیا په نبي اکرم ﷺ باندِ(چه هغوی دعربو په معاشره کښی دماشوم والی نه دصادق او آمین په نامه باندِپیژندے شو)خواکبرالکبائریعنی دغټونه غټه ګناه ده۔لکه څنګه چه مولاناعبدالحئی لکهنوی حنفی رحمه الله لیکلی دی چه ;

الكذبُ على النبي ﷺ من اكبر الكبائر۔(الآثار المرفوعه، صفحه :۱۵)

ترجمه:په جناب رسول الله ﷺ باندِ دروغ جوړول د ټولو نه غټه ګناه ده۔

امام نووی رحمه الله په رسول الله ﷺ باندے دروغ جوړول په الله تعالیٰ باندِد دروغ جوړولو په شان ګرځولے دی۔لکه څنګه چه په شرح د مسلم کښی فرمائی:

فكيف عن قوله شرع وكلامه وحی واذا نظر فی قولهم وَجَدَ کِذباً علی الله تعالیٰ قال الله تعالیٰ (والنجم اذا هویٰ، ماضل صاحبکم وما غویٰ) ۔

(مقدمه شرح المسلم جلد ۱، صفحه ۲۸)

ترجمه: که چرته یو دروغ خبره دے هستیٔ (رسول الله ﷺ) ته منسوب کړے شی چه دچا خبره شریعت اودچا کلام وحی ده نو دهغے به څه حیثیت وی او که چرے ددوی په خبره غوراوکړے شی نودا په الله تعالیٰ بانډِ ددروغ جوړولو په شان ده ۔لکه څنګه چه الله تعالیٰ فرمائیلے دي (قسم م دے وی په ستوری بانډ کله چه دے غائب شی ستاسو ملګرے په غلطه او بےلارے نه دے۔)

دغه شان نبي اکرم ﷺ دموضوع روایت بیانونکی په باره کښی فرمائیلی دی:

من حدث عَنِیّ بِحَدِیثٍ یُریٰ اَنَّہُ کَذِبٌ فَھُوَ اَحَدُ الکاذِبِینَ ۔

(مقدمه صحیح مسلم : ۹)

ترجمه: چاچه څمانه یو حدیث بیان کړو چه هغه یقینادروغ ښکاریږی نو دے یودَ دروغژنو نه دے۔

## موضوعی روایت په قصده بیانول حرام دی:

د موضوع روایت په قصده بیانولو مطلب دا دے چه یو کس ته خه پته وی چه دا دَ رسول الله ﷺ وینانه ده اوددے باوجودبیاهم هغوی ته نسبت اوکړی نوداغته ګناه ده لکه څنګه چه جناب رسول الله ﷺ فرمائ:

مَن حَدث عَنِیّ بِحَدِیثٍ یُریٰ اَنَّہُ کَذِبٌ فَھُوَاَحَدُالکاذِبِینَ۔

(نزهة النظر:۱۰۰،علامه ابن حجر عسقلانی رحمه الله)

ترجمه: چاچه څمانه یو حدیث نقل کړوچه هغه یقینادروغ ښکاریږی نو دے یو د دروغژنو نه دے۔

## دموضوع روايت بيانونکی سزا (په آخرت کښې):

څوک چه د قصده په رسول الله ﷺ باندِ دروغ جوړ کړي نودهغه سزا جهنم دے دهغه خوښه ده چه دجهنم په کومه وادئ کښې ځان له ځائے کوري۔لکه څنګه چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي:

انَّ كِذباً عَلَّي لَيسَ كَكِذب على اَحَدِكُم فَمَن كَذَبَ عَلَّي مُتَعَمِّدًا فليتبوامَقعَدَهُ مِنَ النَّار۔ (صحيح مسلم ، جلد١، صفحه ٣٢)

ترجمه: بے شکه په ما باندِ دروغ جوړول په تاسو کښې په يو کس باندِ د دروغو جوړولو په شان نه دي۔پس هغه څوک چه په ما باندِ په قصده دروغ جوړ کړي نوهغه دِخامخا ځان له په دوزخ کښې ځائے جوړوي۔

دغه شان په يو بل حديث کښې راغلے دي:

من كَذَبَ عَلَّي مُتَعَمِّدًا فليتبوامَقعَدَهُ مِنَ النَّار۔ (صحيح مسلم ، جلد١، صفحه٣٢)

ترجمه: چاچه په ما باندِ په قصده دروغ جوړ کړونوهغه دے ځان له په دوزخ کښې داوسيدو ځائے تيار کړي۔

په يو بل حديث کښې دي:

لا تكذبوا عَلَّي فمن يكذب على يلج من النار۔

(بخاري، كتاب العلم ، باب اثم من كذب على النبي ﷺ ، صفحه ٢٩، جلد١)

ترجمه: په ما باند دروغ مه جوړوے۔څوک چه په مادروغ جوړ کړي نو دوزخ ته به ځي۔

دغه شان په يو بل حديث کښې راغلے دي:

من يقل على ما لم اقل فليتبوا مقعده من النار۔

(بخاري، كتاب العلم ، باب اثم من كذب على النبي ﷺ، صفحه ٢٩)

ترجمه: څوک چه په ما باندِ داسے خبره جوړه کړی چه ما نه وي ويئلے نو دے دِخامخاځان له په دوزخ کښ ځائ تيار کړی۔

دپورتنی حديثونونه دامعلومه شوه چه په قصده موضوع روايتونه بيانول غټه گناه ده ۔داسي کس به دوزخ کښی سوزی۔بلکه علامه سخاوی رحمه الله تر دے پورے تلے دے چه دده توبه هم نه قبليږی،لکه څنگه چه ليکی:

اَلکِذبُ عَلَيهِ ليس کالکذب علیٰ غيره من الخلق والامم،حتی اتفق اهل البصيرة والبصائرانه من اکبرالکبائروصرّح به غيرواحدمن علماءالدين وائمته بعدم قبول توبته۔ (المقاصد الحسنه، صفحه ٧٠)

ترجمه: په رسول الله ﷺ باندِدروغ جوړول دنوروخلقوپه شان نه دی۔ تر دے چه دعلم اوعقل خاوندان په دے خبره کلک دی چه دا غټه گناه ده اوا کثروعالمانودے وضاحت کړے دے چه دده توبه هم نه قبليږی۔

## دموضوع روايت بيانونکی سزا (په دنيا کښی):

څوک چه په قصده په رسول الله ﷺباندِ دروغ جوړکړی په آخرت کښی خودهغه سزاذکرشوخو په دنيا کښی فقهاء او محدثين دده په باره کښی د جسمانی سزا اسره د قيد وبند سزاورکولوحکم لگوی۔لکه څنگه چه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائيلے دی۔

مَن حَدَّثَ بهذا اِستوجَبَ الضرب الشديد والحبس الطويل

(ميزان الاعتدال، جلد۴، صفحه ۲۱، لسان الميزان، جلد ۵، صفحه ۳۲۵)

ترجمه: چه کوم کس موضوع روايت بيانوی نو هغه له سخته سزا ورکول پکاردی او هغه تر ډير وخته پورے په جيل کښی ساتل غواړی۔

چه څوک موضوع روايت بيانول خپله مشغولتيا جوړه کړی نو علماؤ په سختئ سره دده په باره کښې حکم لګولے دے چه دے کافر دے او دده سر قلم کول پکار دی ځکه چه خون ئے مباح دے۔ لکه څنګه چه امام ذهبی رحمه الله ليکلے دی چه:

سويد يو سړے وؤ چه موضوع روايات به ئې بيانول۔ هغه يو موضوع روايت بيان کړے وؤ چه:

"من عشق وعفَّ وكتم ومات ،مات شهيداً"۔

ترجمه: چا چه عشق او کړو او پاکدامن پاتے شو او خپل عشق ئے پټ اوساته او مړ شو نو دے د شهيد په مرګ مړ شو۔

کله چه يحيیٰ بن معين رحمه الله ته دا پته او لګيده نو هغه او فرمائيل چه:

"لو كان لى فرس و رمح لغزوت سويداً۔" (ميزان الاعتدال، جلد۲، صفحه۲۵۰)

ترجمه: کاش که چرے ما سره آس او نيزه وے نو ما به سويد سره جنګ کړے وؤ۔

د سويد په باره کښې د يحيیٰ بن معين رحمه الله دا قسمه الفاظ استعمالول د وژلو مترادف دی۔ په دے وجه عبد الكريم بن ابى العوجاء او محمد بن مصلوب غوندِ واضعينو له د وژلو سزا ورکړے شوے وه۔ (تدريب الراوی۱: ۲۸۴)

## په ناپوهتيا سره موضوع روايت بيانولو کښې ګناه نشته:

که چرے يو انسان ته علم نه وی چه څه کوم حديث بيانوم، دا موضوع دے نو په دے عمل باندِ هغه نه ګناهګارېږی، ځکه چه هغه ته د دے دسند پته نشته دے۔ او هغه دا روايت په ناپوهتيا سره صحيح ګڼړلے دے لکه څنګه چه امام حاکم رحمه الله په خپل سنن کښې بعض موضوع روايات

دصحیح په خیال لیکلے دی په دے وجه حافظ احسن المسعودی رحمه الله فرمائیلی دی چه:

"فان جهل انه موضوع فروی فلا اثم علیه "

(مخة المغیث فی علم مصطلح الحدیث :۳۰)

ترجمه: که چرے یوتن ته پته نه وي چه داموضوع روایت دےاو بیان ئے کړه نو په ده بانډې هیڅ گناه نشته دے۔

## موضوع روایات دکله نه جوړ کړے شوے دی؟

موضوع روایات دجناب رسول الله ﷺ په دورکښې نه ووجوړکړے شوے ۔ دخلفائے راشدینوابتدائی دور هم ددے فتنے نه پاک وو۔دسیدناعثمان ذوالنورین رضی الله عنه په دورخلافت کښې څنګه چه نورے فتنے راپیدا شوے نو دغه شان دموضوع روایاتو فتنے هم سر پورته کړو لکه څنګه چه مولانا ډاکټر سراج الاسلام صیب لیکلے دی:زماپه خیال صحیح قول دادے چه د سیدنا عثمان ذوالنورین رضی الله عنه په دورخلافت کښې خواوشاپه یوڅلویښتمه (۴۱) هجری کښې داحادیثو وضع کولو فتنه راوچته شوے ده۔

(مقدمه،المجموعه فی الاحادیث الضعیفه والموضوعه165/1)

## موضوع روایات ولے جوړ کړے شوے دی؟

دایوفطری خبره ده چه کله هم دیوانسان په مخکښې دیوحدیث د موضوع کیدو تحقیق اوشی نودده په ذهن کښې داسوال پیدا شی چه:

"داحدیث چاوضع کړے دے؟ او ولے ئے وضع کړے دے؟"

محدثینواومحققینوحضراتوډیرداسے سببونه اووجوهات ذکرکړے دی چه دکوموپه وجه موضوع روایات جوړ کړے شوے اوبیان کړے شوے دی۔په هغے کښې څه دادی۔

1. دغلطےنظرےئ اوباطلے عقیدے ثابتولودپاره: بعض وخت کښې څه خلق یا یوه ډله خپله غلطه‌نظریه اوباطله عقیده ګلکولودپاره دځان نه یوحدیث وضع کړی چه د هغوی د غلطے نظرےئ د پاره دلیل اوحجت قائم شی۔لکه څنګه چه فرقه مرجئه کړے دی۔
2. دبادشاهانودخوشحالولودپاره: څه خلق دبادشاهانواودوا کدارانود خوشالولودپاره اودهغوي په دربار کښې ځان له ځائے جوړولودپاره دځان نه حدیثونه وضع کړی دی ۔اوخپل مطلب ئے ترے ترسره کړے دے۔
3. دواعظ دشهرت حاصلولودپاره: بعضِ واعظینودخپل شهرت اودعوامو د توجه حاصلولودپاره حدیث وضع کړے دی۔لکه څنګه چه امام مسلم رحمه الله نقل کړے دی۔

”سیکون فی آخرامتی اناس یحدثونکم بمالم تسمعواانتم ولاآباوکم فایاکم وایاهم“۔ (صحیح مسلم، ۱:۳۳)

ترجمه: ډیرزرده چه ځماپه امت کښې به داسے خلق راپیداشی چه هغوی به تاسوته داسے حدیثونه بیانوی چه نه به تاسواوریدلے وی اونه به ستاسو مشرانو ،دداسے خلقونه ځان ساتئ۔

4. دنیکئ دترغیب دپاره: بعضِ دنیکئ کم علمه او ناپوهه خلق دګناه دکار نه د بچ کیدواودنیکئ د میلان دپاره په عوامی خلقوکښی ترغیباً دځان نه احادیث وضع کوی که چرے دوی ته او وئیلے شی چه ”کذب علی رسول الله ﷺ) خو منع دی نودوی په جواب کښی وائی چه دا( کذب علی النبیﷺ)نه دے بلکه( کذب للنبی ﷺ) دے۔ لکه څنګه چه

دابوعصمة نوح بن ابي مريم نه پوښتنه اوکړے شوه چه تا د عکرمه نه دا بن عباس رضي الله عنه په سندسره دقرآن کریم دهرسورة فضائل څنګه نقل کړی دی حالانکه دده نورو شاګردانوخونه دي نقل کړے ؟

نوهغه په جواب کښی اووئیل چه: مااولیده چه خلق دقرآن کریم په ځائے دامام ابو حنیفه رحمه الله په فقه اود ابن اسحاق رحمه الله په مغازی کښی مشغولیږی نومادثواب په نیت باندِدسورتونوفضائلو والاحدیثونه وضع کړل چه قرآن کریم طرف ته دخلقوتوجه پیدا شي۔ (الاحادیث المرفوعه فی الاخبار الموضوعه، جلد ۵، صفحه ۱۱)

## د موضوع روایت پیژندګلو: (دسند په اعتبار سره):

محدثینوحضراتودرسول الله صلی الله علیه وسلم داحادیثوډیرزیات خدمت کړے دے۔ددوی دډیروکوششونوپه وجه دصحیح اوموضوع حدیث ترمینځه داسے بیلتون راغلے دے لکه څنګه چه د زمکے او آسمان تر مینځه دے۔

محدثینوکرامودموضوع حدیث دپیژندګلوپه حواله څه اصول اوقاعدے مرتب کړے دی چه په هغے کښی څه دادی۔

1. چه واضع په خپله اعتراف اوکړی:

دموضوع حدیث دپیژندګلوغټه نخښه داده چه واضع په خپله اقرار او کړی چه ما فلانے حدیث وضع کړے دے لکه څنګه چه عبدالکریم ابن ابی العوجاء پخپله د سزائے موت په وخت کښی اعتراف کړے وؤچه:

"والله لقدوضعت فیکم اربعة آلاف حدیث احرم فیهاالحلال واحل فیها الحرام۔" (الموضوعات لابن جوزي رحمه الله، صفحه ۱۸)

ترجمه: په الله مي دِ قسم وی چه ماپه تاسو کښې ځلورزره حديثونه وضع کړے دی چه د هغے په وجه ماحلال حرام کړی دی اوحرام مِ حلال کړے دی۔

2. مشهور بالکذب: (کله چه يوراوی په دروغو کښې مشهوروی)

کله چه داحاديثوروايت کوونکی په دروغوکښې مشهوروی اودهغه نه هيڅ يوثِقه راوی روايت نه وی کړے۔لکه صخربن محمدالمروزی الحاجبی، مامون احمد السلمی وغيره۔

3. کله چه د تاريخ په حوالے سره دروغ ښکاره شی:

محدثينودموضوع دپيژندلو يوه نخښه دا ښودلے ده چه کله د يو راوی دروغ په تاريخی اعتبارسره ښکاره شی۔په دے حوالے سره سفيان ثوری رحمه الله فرمائی:

"لمّااستعمل الرواة الكذب استعملنالهم التواريخ" (الكفاية،للخطيب:١٩٣)

ترجمه: کله چه راويانودروغ وئيل شروع کړونوموږه دهغوی دپاره د تاريخ استعمال شروع کړو۔

مثلاً مامون بن احمد(دهرات اوسيدونکے)وائي چه ماد هشام بن عمارنه فلانے حديث آوريدلے دے۔نوحافظ ابن حبان رحمه الله ترے نه پوښتنه اوکړه چه: ته کله شام ته تلے وے؟نوهغه اوئيل چه په ٢٥ هجری کښې۔په جواب کښې ورته ابن حبان اووئيل چه تادکوم هشام نه روايت نقل کړے دے نوهغه خوپه ٢٤٥هجری کښې وفات شوے دے۔

(المجروحين لابن حبان رحمه الله، جلد٢، صفحه٣٨٣)

4. کله چه دراوی داحوالونه دروغ ښکاره شي:

بعضِ وخت کښې دراوی دحالاتونه دهغه دروغژن کیدل ثابتیږی۔لکه اکثر روافض چه داهل بیتو په فضیلت کښې حدیثونه وضع کوی۔ څنګه چه علامه سیوطی رحمه الله لیکلی دی:

"ومن القرائن کون الراوی رافضیاالحدیثٍ فی فضائل اهل البیت "

ترجمه: یعنی په اندازه لګولوسره د راوی رافضی کیدل اود اهل بیتوپه باره کښې احادیث وضع کول۔ (تدریب الراوی، جلد۱، صفحه ۱۴۱)

## دموضوع روایت پیژندګلو (دمتن په اعتبارسره):

داپورتنئ څلورنخښئ دسند په اعتبارسره دموضوع روایت متعلق وے۔ نورے نخښے د(روایت)متن په اعتبارسره دی۔چه هغه دادی۔

1. دالفاظورکاکت(خرابي):

دموضوع حدیث یوه نخښه داده چه ددے په الفاظوکښې به رکاکت (خرابي)وی۔رکاکت په دوه قسمه دے۔

(ا) لفظی رکاکت:

کله چه په الفاظویاجملوکښې دفصاحت اوبلاغت معیاریا دعربی قاعدو خلاف ورزی اوشي۔

لکه"الدیک الا بیض صدیقی و صدیق صدیقی وعدوعدوی"۔

ترجمه:سپین چرګ ځما دوست دے او ځما ددوست دوست دے او ځما د دښمن دښمن دے۔

ملاعلی قاري رح ددے روایت متعلق لیکلے دی چه:

قال السخاوی رحمه الله:لکن فی اکثرالفاظه رکاکۃ لارونق لها

(الموضوعات الکبریٰ:۳۰۶)

ترجمه: سخاوي رحمه الله فرمائيلے دي: ددے په اکثروالفاظوکښې رکاکت دے چه اډو خوندے نِشته۔

**(۲)معنوي رکاکت:**

كله چه ديوعبارت په الفاظواوجملوكښې فصاحت اوبلاغت معياري وي او دعربي قواعدوخيال پكښې هم ساتلے شوے وي خودهغے په معنیٰ اومطلب كښې ركاكت ښكاره وي لكه:

"اربع لايشبعن من اربع ارض من مطروانثیٰ من ذكروعين من نظر وعالم من علم" (المنار المنيف۹۹)

ترجمه: څلورڅيزونه دي چه دڅلوروڅيزونونه نه مړيږي، زمكه د باران نه، ښځه د سړي نه، سترګه د ليدونه اوعالم د علم نه۔

2. **چه كله يوروايت دحديث په معروف مصادروكښې اونه مونده شي:**

درسول اللهﷺ احاديث محدثينوډيركوشش اومحنت سره په مختلفو كتابونوكښې مرتب كړے دي لكه صحيح بخاري، صحيح مسلم، صحيح ابن خزيمه ياسنن وغيره۔لكه چه يوروايت په معروفومصادرواواحاديثوكښې او نه مونده شي اونورغيرمعروف كتابونوكښې وي لكه احياءعلوم الدين، حياةالحيوان وغيره، داقسمه احاديث موضوع وي۔

3. **كله چه يو روايت د اخلاقي اصولوخلاف وي:**

بعضِ وخت كښې يو روايت داسے هم وي چه د انساني اخلاقود ائرے نه وتے وي۔اوديوعام شريف الطبع انسان نه ددا سے قسمه الفاظو توقع نه

شی کیدے نودرسول الله ﷺ نه به ځنګه اوشی لکه"النظر الی المر-اة یزید البصر"۔

ترجمه: ښځوته کتوسره نظرزیاتیږی۔ (الفوائد المجموعه لشوکانی :۲۱۷)

4. کله چه یو روایت دعادت یا مشاهدے خلاف وی:

دموضوع روایت یوه نخښه داده چه دعادتونواودمشاهداتوخلاف وی لکه ځنګه چه علامه سخاوی رحمه الله فرمائی:

"او(الموضوع)یکون مما یدفع الحس والمشاهدة"

ترجمه: موضوع حدیث د محسوساتو اودمشاهداتو خلاف وی۔

(فتح المغیث:۳۱۵)

مثلاً: اذاعطس الرجل عندالحدیث فهودلیل صدقه۔

ترجمه: کله چه یو بنده دخبرودوران کښی پرنجے اوکړی نودادده د صداقت دلیل دے۔

5. دعام عقل خلاف کیدل:

کله چه یو روایت دومره غیرمعیاری شی چه دعام انسان دعقل مطابق هم نه وی نودا موضوع وی لکه ځنګه چه امام ابن جوزی رحمه الله فرمائیلی دی۔

"کل حدیث رایته یخالف العقول فاعلم انه موضوع"

ترجمه: چه کله ته یو حدیث اووینے چه هغه د عقل خلاف وی نوپوهه شه چه دا موضوع دے۔ (الموضوعات۱:۱۰۶)

مثلاً: تختموابالعقیق فانه ینفرالفقر۔

ترجمه: تاسو دعقیق ګمے په ګوته کوئ ځکه چه دا غربت ختموی۔

(الفوائد،لشوکانی:۲۱۷)

6. **کله چه یوروایت دطبیبانو یاډوزمارودبیان په شان وی:**

بعض وخت کښې موضوع حدیث دحکیمانودخبرو یادکړتوویتوکونکود خبرو په شان وی۔لکه څنګه چه ملاعلی قاری لیکلی دی:

"ان یکون الحدیث (الموضوع) بوصف الاطباء والطریقة اشبہ والیق "

**ترجمه:** داچه یوروایت دطبیبانو اوډوزمارودبیان په شان وی۔

(الموضوعات الکبریٰ:۴۱۸)

**مثلاً:** الباذنجان شفاء من کل داءٍ۔ (المقاصدالحسنه للسخاوی)

**ترجمه:** باتینګړ دهرې بیمارۍ شفاء ده۔

7. **کله چه یوروایت کښې د مختلفو کسبونو ناکاره والے ذکر شی:**

بعض وخت کښې په یوروایت کښې دمختلفو کسبونو(هنرونو)بدی بیان کړے شی۔لکه څنګه چه امام ابن قیم رحمه الله فرمائیلی دی:"ذم الحیاکة والاساکفة والصواعنین اوصنعة من الصنائع المباحة کذب علی رسول اللهﷺ اذ لایذم الله تعالیٰ ورسوله الصنائع المباحة"۔

**ترجمه:** جولاګانو، چمیارانو یامباح هنرونو کښې دیوهنر مذمت بیانونکے حدیث په رسول الله ﷺ باندې بهتان دے،ځکه چه الله تعالیٰ اودهغه رسول ﷺ دجائز کسبونو مذمت نه دے کړے۔ (المنارالمنیف:۱۰۵)

8. **کله چه یو روایت د تاریخی حقائقو خلاف وی:**

کله ناکله یوموضوع روایت جوړونکے دتاریخی حقائقو خلاف یوه خبره د ځان نه رسول اللهﷺ ته منسوب کړی۔چه دهغے پته په قراینوسره معلومیدے شی۔ لکه څنګه چه علامه ابن قیم رحمه الله لیکلے دی:

"ومنهامایفترون بالحدیث من القرآئن التی یعلم انه باطل"

ترجمه: په دے (موضوع) کښې یو شکل دادے چه محدثین ئې د قرائینو نه اخذ کوی چه دا حدیث باطل دے۔ (المنار المنیف:۱۰۷)

9. چه کوم حدیثونه د ګلونو په غوره والی باندِ لیکلے شوے وی:

لکه څنګه چه علامه ابن قیم رحمه الله فرمائیلی دی:

"احادیث فضائل الازهار، کحدیث فضل النرجس والوردوالمرزنجوش و البنفسج والبان کلها کذب" (المنار المنیف:۱۲۶)

ترجمه: دګلونو په فضیلت کښې احادیث، د نرګس، ګلاب، مروا (یو قسم خوشبودار بوټے) بنفشه اودیان نوے خوشبویه وڼے په باره کښې جوړ کړے شوی احادیث ټول موضوع دی۔

## د موضوع حدیث جوړونکو قسمونه:

دعلم حدیث ماهرینودموضوع روایت جوړونکو یوڅو قسمونه خودلے دی چه هغه دادی:

1. زنادقه: زنادقه هغه بے دینه خلق دی چه کوم په شریعت پورے مذاق کوی۔ او بے فائدے اوباطل ئې ګڼړی۔ امام احمد بن یزید فرمائیلے دی:

وَضَعَتِ الزَّنَادِقَةُ عَلَى رسول الله ﷺ اِثنی عشرالف حدیثاً

(الضعفاء الکبرئ ۱:۱۴)

ترجمه: زندقیانو په رسول الله ﷺ باند دولس زره احادیث وضع کړے دی۔

2. بعضِ عبادت ګزاراوزاهدان:

بعض هغه عبادت ګزاره اوپرهیزګاره خلق چه دعلم حدیث نه بےخبره وی اوپه رسول اللهﷺباندورته دروغ جوړول ګناه نه ښکاریږی په دے وجه داسے خلق داعمالوپه فضیلتونوباندحدیثونه جوړوی چه خلقوکښی دنیک اعمالوشوق پیدا کړی۔په دے وجه امام مسلم رحمه الله لیکلے دی:

"لم نرالصٰلحین فی شیءٍ اکذب منهم فی الحدیث " (مقدمه مسلم ۱:۱۴)

ترجمه:مونږه په حدیث بیانولوکښی دنیکانوخلقونه زیات څوک خطاکار (دروغژن) نه دی لیدلے۔

امام مسلم رحمه الله ددے وجه دا پیش کوی چه :

"یجری الکذب علیٰ لسانهم ولا یعتمدون الکذب "

(مقدمة صحیح مسلم ۱:۱۸)

ترجمه:ددے خلقوپه ژبه دروغ جاری وی اوڅوک پرے ددروغوګمان نه کوی۔

3. بعضِ فقهاء:بعض فقهاءدموضوعاتوجوړونکی دی لکه دعراق بعضِ فقهاءفرمائی چه دقیاس جلی نه کوم حکم مستفادوی،هغه رسول اللهﷺ ته منسوب کولے شے۔هم دغه وجه ده چه ددوی په کتابونوکښی داسے روایتونه زیات دی،لکه:

من صلی خلف عالم تقی فکانما صلی خلف نبی

(بدائع الصنائع،۲:۲۰۲،هدایه،۱:۱۰۱)

ترجمه:چاچه په یوپرهیزګارعالم پسے نمونځ اوکړوګویاکه هغه په پیغمبر پسے نمونځ اوکړو۔

ددے روایت په باره کښې ملاعلي قاري رحمه الله فرمائیلي دي۔چه د
دے هیڅ اصل نیشته دے۔(الاسرارالمرفوعه:۳۳۴)

4. مذهبي بدنيته: بعض ناپوهه اومذهبي بدنيته عالمان دبدنيتے په وجه باندِدخپل مذهب داوچتولواودنورومذهبونودلاندِکولودپاره موضوعات جوړ کړي۔

لکه،کله چه مامون بن احمدهروي ته چااووے چه ستاخيال دے چه د امام شافعي رحمه الله پیروکارپه خراسان کښې څنګه په تیزئ زیاتیږي۔نوهغه فوراًیوموضوع روایت جوړکړواوئےوئیل چه ماداحمدبن عبدالله نه اوریدلے دي،هغه دعبدالله بن معدان ازدي نه اوهغه د سیدنا انس رضي الله عنه نه مرفوع روایت نقل کړے دے چه:

"یَکُونُ فی اُمَّتِي رَجُلٌ یُقَالُ لَہٗ محمد بن ادریس اَضَرُّعَلٰی اُمَّتِي مِن اِبلِیس وَ یَکُونُ فِي اُمَّتِي رَجُلٌ یقال لَہٗ ابوحنیفۃ ھُوَسِرَاجُ اُمَّتِي۔

(الموضوعات۱:۴۳)

ترجمه: ځماپه امت کښې به یوسړے وي چه دهغه نوم به محمدبن ادریس شافعي وي،هغه به ځمادامت دپاره دشیطان نه زیات خطرناک وي۔په دے امت کښې به یو بل سړے هم وي چه د هغه نوم به ابوحنیفه رحمه الله وي هغه به ځما د امت رڼرا وي۔

5. بعضِ بغضیان: بعض وخت کښې یو بغضي اوناسوده دبُغَض اودناسَودے په وجه دځان نه موضوع روایت جوړکړي۔لکه سیف بن عمرفرمائیلےدي چه څه د سعدبن طریف سره ناست وومه چه دهغه ځوے د مدرسے نه په ژړاراغے،پلارترے نه تپوس اوکړوچه ولے ژاړے۔ده اوئیل چه استاد

او وهلمه، نوهغه اووے چه زه به نن دے د شرمولو نه بغير پرے نه ځمه،نوپه دروغه ئے دځان نه حديث جوړکړوچه:

ماته عکرمه دا ابن عباس رضي الله عنه نه مرفوع روايت نقل کړے دے چه:

" شِرَارُکُم مِن مُعَلِّمِیکُم اَقَلُّهم رَحمَۃَ عَلَی الیَتِیمِ واَغلُظُهُم عَلَی المِسکِین "

ترجمه:ستاسودبچوهغه استاذان ناکاره دی چه په يتيم بانْدِ لږ رحم کوونکی او په مسکين بانْدِ سختی کوونکے دی۔

6. درباری مولیان:په موضوع روایتونوجوړونکوکښی درباری اوناکاره مولیان دهرچانه مخکښی دی۔دوی دغالیےطبقے دخوشحالولود پاره اوهغوی ته د نزدے کيدلودپاره دځان نه حديثونه جوړوی۔لکه غياث بن ابراهيم نخعی کوفی يوپيره دخليفه مهدی په دربار کښی حاضر وؤ۔مهدی يوه کونتره ساتلے وه چه ورسره به ئے لوبے کولے۔هغه کونتره دده مخے ته وه۔غياث بن ابراهيم ته اووئيلے شو چه امير المؤمنين ته يوحديث واوروه،نوهغه اووئيل

"لَا سَبَقَ اِلَّا فِي نَضلٍ اَو خُفٍّ اَو جَنَاحٍ" (الموضوعات۱:۴۳)

ترجمه: مقابله نه ده جائز مګرصرف په غشي ويشتوکښي، اوښان، اسانو او مرغوکښی۔

په صحيح حديث کښې دجناح اضافه نشته دے۔دادخليفه خوشحالو د پاره ده دځان نه په دروغه اوکړه۔

7. ځان خودونکی واعظان:بعضِ ځان خودونکی واعظان چه دعلماؤپه لباس کښی وعظ اونصيحت کوي۔په مجمعه بانْدِدا ثرغورزولودپاره دځان نه ناشناناشنارواياتونه جوړوی صرف ددے دپاره چه دده تعريف کوونکی او

اوريدونکی ډیر شی۔لکه څنګه چه امام ابن حبان خپل سند سره د ابو
جعفر بن محمد بن محمد طیاسی نه روایت کوی۔چه امام احمدرحمه
الله اوامام ابن معین رحمه الله درصافه په جامع مسجد کښی نمونځ
اوکړو۔د نمونځ نه پس یوواعظ اودریدواوداسے وعظ ئے شروع کړو چه
ماته امام احمد بن حنبل رحمه الله اویحیٰ بن معین داحدیث بیان
کړے دے چه څوک یوپیره"لااله الا الله"اووائي نوالله تعالیٰ ددے
دهرلفظ نه یوه مرغۍ پیدا کوی چه د هغے مخوکه د سرو زرواووزرے
دمرجانووی۔اوداسے یوشل پانړے ئےواوروے۔امام احمدبن حنبل
اوامام یحیٰ بن معین په حیرانتیاسره یوبل ته اوکتل چه داروایت
خومونږه نن واوریدو۔ او د یو ناشناشاګردنه مووااوریدوچه دهغه سره
زمونږه ملاقات هم نن دوعظ ختمیدلونه پس اوشو۔دوی دواړودواعظ
نه تپوس اوکړو چه تاداحدیث دچا نه اوریدلے دے؟ هغه جواب ورکړو
چه د امام احمدبن حنبل اودامام یحییٰ ابن معین نه۔دوی
دواړوبیاخپل تعارف اوکړواواوئے وئیل چه هغه خو مونږه دواړه یواوده
ته ئے درب واسطه ورکړه۔چه خدائے دپاره زمونږپه نامه دروغ مه
خوَرَوَه ۔دے دهوکه بازواعظ اوئیل چه مابه اوریده چه احمد او یحیٰ
دواړه ډیرکم عقل دی۔اوس راته پته اولګیده هغه رښتیا دی۔ دوی
تری تپوس اوکړوچه هغه څنګه؟ده په چالاکۍ سره اووے چه په ټوله
دنیا کښی یواحمداویحیٰ دے؟ځماخواولس استاذان داسے دی۔ چه
دهغوی نومونه احمد اویحیٰ دی۔ (التبیان فی علوم القرآن ،الموضوعات،۴۶:۱)

8. بعض سوداګر:بعض سوداګرودخپل تجارت دترقۍ دپاره په دروغه احاديث وضع کړے دی۔چه دکانداری او تجارت ئے روان شی۔لکه محمد بن حجاج يوفالوده فروش وو،فالوده به ئے خرخوله۔هغه دفالودے په فضائيلو باندی روايتونه وضع کړی دی۔لکه چه وائی:

"اطعمنی جبرئيل الهريسة لا شد بها ظهری لقيام الليل "

ترجمه:ما باندِجبرئيل فالوده اوخوروله دے دپاره چه د تهجددپاره مِ ملا مضبوطه شی۔ (الموضوعات۳:۱۷)

9. دخپل مقابل دغلے کولودپاره:بعض وخت کښی د بُغَض اودعناد په وجه د خپل مقابل د غلے کولو د پاره دځان نه حديث وضع کوی۔

10. دذاتي فائدودوجے نه:بعض وخت کښی خلق دذاتی فائدودوجے نه دځان نه احاديث وضع کړی۔لکه محمد بن عبد المالک انصاری يونابينا سړے وو۔دخپلے ذاتی فائدے دپاره ئےدځان نه داحديث جوړ کړے وو:

"مَن قَادَ اَعمیٰ اَربعين خُطوَةً وَجَبَت لَہُ الجَنَّۃَ"

ترجمه:چاچه يونابينادلاسه اونيسه اوڅلويښت قدمه ئے بوتلونوهغه د پاره جنت واجب شو۔ (ميزان الاعتدال۲:۶۳۱)

11. بعض دبزرګئ دعویٰ لرونکی:بعضِ دبزرګئ دعوی لرونکی خلق دعواموپه زړونوکښی دبزرګ ثابتولودپاره دځان نه په دروغه حديثونه جوړکړی۔لکه رتن هندی چه دشپږمے صدئ سړے دے او دعویٰ دفاطمے رضی الله عنها په واده کښی دشرکت کوی۔ (تذکرة الموضوعات:۱۰۴،۱۰۳)

12.دنیکئ په نیت سره موضوع حدیث جوړونکی:بعضِ وخت کښی خلق دنیکئ په نیت سره دځان نه حدیثونه جوړکړی۔چه دهغے په وجه په عوامو کښی د نیکئ رغبت اومیلان پیداشی۔لکه مسیره بن عبدربه دقرآن کریم بعضِ سورتونوپه فضائیلوبانداِحدیث وضع کړی دی۔

## په موضوع روایت باندِ د حکم لګولو رائج الفاظ:

محدثین حضرات په موضوع روایت باندِدحکم لګولووخت کښی داقسمه الفاظ استعمالوی۔

| | | |
|---|---|---|
| (۱) موضوع | (۲) لایصح | (۳) لا یَثْبُتُ |
| (۴) لَیسَ بِثَابِتٍ | (۵) مُنکَرٌ | (۶) لاَ اَصلَ لَهُ |
| (۷) لَیسَ لَهُ اَصلٌ | (۸) بَاطِلٌ | (۹) کَذِبٌ |

(ملخص ازالمجموعة فی احادیث الضعیفة والموضوعة١:١٠٦)

کله چه محدثین حضرات په یوروایت باندِدپورتنی لیکلے شوی احکامو نه یوحکم اولګوی نودده مطلب به داوی چه داروایت موضوع دے۔

## موضوع روایات بیانونکی راوِیان:

دفنِ حدیث دماهرینوپه ډیروکوششونوسره مونږ.ته هغه راویان څرګند شوی دی کوموچه په رسول الله ﷺ باندِدروغ جوړولوکښې څه کمے نه دےپریخے۔دهغے ټولونقل کول خوګران دی، په هغےکښې دبعضِ معروف راویانونومونه دادی۔

| ۱ | ابان بن یوسف المقدسی | ۲ | ابراهیم بن براء |
|---|---|---|---|
| ۳ | ابراهیم بن زکریاواسطی | ۴ | ابراهیم بن عبد اللہ بن خالدمصیصی |
| ۵ | ابن علوان | ۶ | ابومقاتل ثمرقندی حفص بن مسلم |
| ۷ | ابونعیم ضرار | ۸ | ابوالبختری وهب بن وهب |
| ۹ | ایوب بن مدرک حنفی | ۱۰ | ابوالقاسم عبد اللہ بن احمد بن عامر |
| ۱۱ | بشربن ابراهیم انصاری | ۱۲ | نهشل بن سعیدبصری |
| ۱۳ | عبد اللہ بن احمدبن عامر | ۱۴ | جریربن احمد بجلی کوفی |
| ۱۵ | خالدبن یزیدعمری | ۱۶ | مامون بن احمد السلمی |
| ۱۷ | رتن هندی | ۱۸ | زکریابن یحیٰ الکسائی |
| ۱۹ | سلیمان بن عمر النخعی | ۲۰ | ابوحفص بشربن عبید القرشی |
| ۲۱ | عبدالقدوس بن عبدالسلام | ۲۲ | ابوبکرمحمدبن اسحاق بن مهران |
| ۲۳ | سالم بن عبدالاعلیٰ | ۲۴ | عاصم بن سلیمان العبدی |
| ۲۵ | کثیربن سُلیم | ۲۶ | اسماعیل بن ابی زیاد |
| ۲۷ | عبدالعزیزبن ابان | ۲۸ | یعقوب بن ولید |
| ۲۹ | یحیٰ بن حسین علوی | ۳۰ | یونس بن عطاءبن عثمان الصراعی |

(ملخص ازالمجموعة فی احادیث الضعیفة والموضوعة۲:۵۸۹)

## بعض، هغه کتابونه چه پکښې بعضِ روایات موضوع دي:

دصوفیائےکراموپه کتابونوکښې موضوع روایات زیات وی۔هغوی د سند په اعتبارسره ډیره زیاته بے احتیاطی کوی۔هم دغه وجه ده چه د صوفیائےکراموکتابونه ناقابل اعتباره وی۔لاندے دیوڅوکتابونوحوالے ورکولے شی۔

1. احیاءعلوم الدین:احیاءعلوم الدین دحجة الاسلام ابوحامدمحمد الغزالی رحمه الله دتصوف اوفلسفے په موضوع بانډِیربهترین کتاب دے۔ خوپکښې ئے ډیر زیات موضوع روایات نقل کړے دی۔

علامه ابن جوزي په دے حوالے سره لیکلے دی:

"وجاءابوالحامدالغزالی فصنف کتاب الاحیاءعلی طریق القوم وملاه بالاحادیث الباطلة" (تلبیس ابلیس:۱۶۴)

ترجمه:ابوحامد غزالی رحمه الله راغ نودصوفیاؤپه طریقه بانډِئے الاحیاء اولیکه او هغه ئے د باطل احادیثونه ډک کړو۔

دغه شان امام ابن تیمیه رحمه الله هم موضوع احادیث داحیاءعلوم الدین په نقائصو کښې شمار کړے دی۔ (مجموع الفتاویٰ ۵۲۲:۱۰)

علامه سبکی رحمه الله داحیاءالعلوم موضوع اوبے سنده روایتونه راغونډ کړےدی چه د هغے نه یو سل دوه صفحے ډکے شوے دی۔

مفتی نجم الحسن امروهوی لیکلے دی چه:"احیاءعلوم الدین"تربیت و تزکیه لئے ایک بہترین کتاب ہے لیکن اس میں بہت سی موضوع احادیث بھی ہیں۔

(نجم الفتاویٰ، ۱:۴۱۱باب مایتعلق بتحقیق الروایات)

علامه ذهبي ليکلي دي چه: صنف ابوحامد (الاحياء) وملاه بالاحاديث الباطلة و لم يعلم بطلانها۔ (سيراعلام النبلاء ۱۴: ۳۳۰)

ترجمه: ابوحامد(الاحياء)اوليکه اوهغه ئې د باطل احاديثو نه ډک کړو او د هغې په بطلان پوهه نه شو۔

2. قوت القلوب: داد مشهور صوفي ابو طالب مکي کتاب دے۔دده په باره کښې د محدثينو هغه فيصله ده کومه چه دامام غزالي رحمه الله د احياء علوم الدين په باره کښې ده۔ دده په باره کښې خطيب بغدادي ليکلے دي۔

محمد بن علي بن عطيه، ابوطالب المعروف به المکي د صوفياؤ په طريقه بانډې دقوت القلوب په نامه بانډې يوکتاب ليکلے دے چه په هغے کښې دخرابو او بے کاره څيزونوذکر دے۔

3. غنية الطالبين: داد شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله مشهور کتاب دے۔ خوپه دے کښې بعض روايتونه موضوع دي۔

4. حلية الاولياء: داد شيخ ابونعيم الاصفهاني رحمه الله کتاب دے۔ محدثين ددے په باره کښې ليکي چه په دے کتاب کښې ډېرزيات موضوع روايات دي۔

علامه ابن جوزي رحمه الله دخپل کتاب تلبيس ابليس په صفحه ۱۲۵ کښې په دے کتاب بانډې سخت تنقيد کړے دے۔

5. دقائق الاخبار: په دے کتاب کښې مصنف وچ اولوانده او بے سنده احاديث راجمع کړے دي۔ داڅوک داحاديثوپه کتاب کښې نه شماري۔ (فتاویٰ فريديه ۱: ۲۶۲، کتاب مايتعلق بالحديث والسنة)

6. نزهة المجالس ومنتخب النفائس عن اخبارالصالحين: دادشیخ عبدالرحمٰن بن عبدالسلام الصفوری الشافعی(۸۹۴م)تصنیف دے۔ددے کتاب په باره کښې علماءفرمائی چه په دے کښې ډیرزیات موضوع روایات موجود دی۔ (فتاویٰ دار العلوم زکریا،۸: ۲۱۸)
7. بهجة الاسرار:دادشیخ علی بن یوسف الشطنونی کتاب دے۔په دے کښې دشیخ عبد القادر جیلانی اودنورومشائخودڅوندحالات لیکلی شوی دی چه په هغے کښې ډیرروایتونه موضوع دی۔
8. تفسیرروح البیان:دادشیخ اسماعیل حقی کتاب دے،چه داستنبول اوسیدونکے وؤ۔په دے کتاب کښې موضوع روایات را جمع کړے شوے دی۔په دے وجه دابےاعتباره کتاب دے۔لکه څنګه چه ملاعلی قاری رح لیکلے دی۔روایة لبعضهم انه عدمن المفسرین الذین نفقت علیهم الاحادیث الموضوعة الشیخ الخازن صاحب التفسیرالمسمیٰ بالمعالم و اسماعیل آفندی حقی صاحب التفسیرالمسمیٰ بروح البیان۔

(الموضوعات الکبریٰ:۷)

ترجمه:دبعض( راویانونه )روایت دے چه دا کتاب دهغه تفاسیرونه دے چه په کوموکښې شیخ خازن موضوع روایات شامل کړی دی چه دهغه تفسیرپه "المعالم"باندِاوداسماعیل حقی تفسیر په"روح البیان"باندِمعروف دے۔

9. تنبیه الغافلین:دادفقیه ابواللیث ثمرقندی کتاب دے،حافظ ذهبی لیکلی دی چه په دے کښې ډیر موضوع روایات دی لکه څنګه چه په کشف الظنون نومے کتاب کښې لیکلی شوے دی۔

ددے نه علاوه په الجامع الصغير دعلامه سيوطی،قصص الانبياءدثعلبی،درة الناصحين دالخويری،تفضيل العقل دوه جلده دسليمان ابن عيسیٰ السجزی الكذاب الهالک،بدائع الزهورفی وقائع الدهوردابن اياس،خريدة العجائب اوفريدة الغرائب دابن الوردی،الترغيب والترهيب داصبهانی، عجائب القرآن دمحمودبن حمزه الكرمانی،كتاب العروس(سيدناجعفر صادق ته منسوب دے)کښی په ګنړ شمير موضوع روايات ليکلی شوی دی۔

(الموضوعات الكبریٰ،۷،۸)

## په موجوده دور کښی دموضوع رواياتو خورولو ذرائع:

موجوده دورچه دامت مسلمه دپاره قسماقسم فتنونه ډک دے۔په دے کښی يوه غټه فتنه دموضوع رواياتوخوريدل دی۔موضوع روايتونه په لاندنوذريعوخوريږی۔

1. ميډيا:دپرنټ،اليکټرانک او د سوشل ميډياپه ذريعه ډيرموضوع روايات خوروﻟے شی۔ساده لوح عوام په دے دصحيح احاديثو اعتماد کوی۔ حالانکه هغه موضوع وی۔حکومت له په سرکاری توګه ددے مخ نيوے پکار دے چه دموضوع رواياتوسلسله ختمه شی۔
2. اخبار:اکثر په اخبارکښی دخصوصی اشاعت په موقع لکه دمحرم يا صفر وغيره په موقعه ډيرزيات موضوع روايات چهاپ کيږی۔چه هغه په عوامو کښی خاص په تعليم يافته طبقه کښی ډيرپه تيزئ سره خوريږی۔دغه شان په رسالوکښی هم کيږی۔ديومسلمان په حېثيت سره مونږله په دے معامله کښی ډيراحتياط پکار دے۔

3. غیرمعیاری واعظان: بعضِ موقعوباندِغیرمعیاری واعظان دخپل مقبولیت دپاره رشتیااودروغ یوځائے کړی۔اوپه من گهړت روایاتو باندِ مشتمل یوښکلے وعظ تیارکړی۔کاش که دغه خلقودرسول الله ﷺ احادیثو سره دومره زیاتے نه وے کړےنو معامله به دے ځائے ته نه رارسیده۔
4. بعضِ دینی کتابونه: په بعضِ دینی کتابونوکښی هم موضوعات بیان شوے وی۔لکه نفحة العرب وغیره۔دوفاقِ المدارس مشرانوله پکاردي چه د نصاب نه داسے قسمه موضوع روایتونه اوباسی چه د طلباؤ ذهن ددے نه خالی شی۔

## په موضوع روایت باند لیکلے شوی کتابونه:

په دےموضوع باندمحدثینواومحققینوډیرمحنت کړے دے۔او د رسول الله ﷺ د احادیثونه ئےموضوع روایات داسے اوباسلے دی لکه څنګه چه داوړونه ویښته اوباسلے شی۔دوی په ډیر کوشش سره په دے موضوع باندِکتابونه لیکلے دی۔په هغے کښی دبعض مشهورو محققینو کتابونه دا دی،

1. العقیده الصحیحه في الموضوعات الصریحه: دا کتاب عمر بن بدرسعیددرانی ،موصلی، حنفی لیکلے دے۔
2. الموضوعات: ددے مصنف حسن بن محمد بن حسن بن علی بن حیدرقرشی حنفی صاغانی دے۔چه په لاهورکښی پیداشوے دے،په بغدادکښی وفات شوے اوپه مکه کښی دفن شوے دے۔ددےکتاب اردو ترجمه،تحقیق اوتعلیق مولانا ډاکټرسراج الاسلام حنیف کړے

ده،او په کال (۲۰۱۲ء او ۱۸اء) کښې ئےد دارالقرآن و السنة هوسئ مردان نه چهاپ کړے دے۔

3. الاسرارالمرفوعه فی اخبارالموضوعه: ددے کتاب مصنف علی بن سلطان محمد،قاری،حنفی دے۔داپه الموضوعات الکبریٰ اوالموضوعات الکبیربانډِهم معروف دے۔مولانا ډاکټرسراج الاسلام حنیف ددے کتاب اردو ترجمه،حواشی اوتعلیقات لیکلی دی اوپه کال( )کښې ئےددارالقرآن والسنه هوسئ مردان نه چهاپ کړے دے۔

4. المصنوع فی معرفة الموضوع:دا هم د علی بن سلطان محمد،قاری،حنفی تصنیف دے۔

5. الهیئة السیئات فی تبین احادیث الموضوعات: دا هم د علی بن سلطان محمد،قاری،حنفی تصنیف دے۔

6. الآثار المرفوعه فی الاخبار الموضوعه: دا دَ ابی الحسنات محمد بن عبدالحئ لکهنوی حنفی تصنیف دے۔ مولانا ډاکټرسراج الاسلام حنیف ددے کتاب تحقیق،تخریج اوتعلیقات په عربئ ژبه کښې کړے دی،اوپه کال(۲۰۰۵ء) کښې ئےددارالقرآن والسنه، هوسئ، مردان نه چهاپ کړے دے۔

7. اللؤلؤالمرصوع فیماقیل لااصل له او بأصله الموضوع:دادمحمد بن خلیل قاؤقجی حنفی تصنیف دے۔

8. المنار المنيف فی الصحیح والضعیف: دا دابی عبد الله محمد بن ابی بکر بن ایوب ابن قیم الجوزی الحنبلی کتاب دے۔

ددے نه علاوه په موجوده دور کښې مختلفو محققینو په ډیر محنت سره موضوع روایاتو باندی تحقیقی کار کړے دے۔ په هغے کښې بعض کتابونه دا دی۔

1. المجموعه في الاحاديث الضعيفه والموضوعة:

دا د مولانا ډاکټر سراج الاسلام تصنیف دے چه په اردوژبه کښې په دوؤ جلدو کښې د دار القرآن والسنه هوسئ، مردان نه چهاپ شوے دے۔ په دے کښې تقریبا نهه سوه ضعیف او موضوع روایات نقل شوی دی۔

2. غیر معتبر روایات کا فنی جائزه:

دا د مفتی طارق امیر خان تصنیف دے چه په اردوژبه کښې په دوؤ جلدو کښې چهاپ شوے دے۔

3. چند معروف لیکن غیر مستند احادیث:

دا د مفتی صداقت علی تألیف دے چه د مکتبه عمر فاروق پیښور نه په پنځه جلدو کښې چهاپ کړے شوے دے۔

## سل موضوع روايات

1. آلیت علی نفسی ان لا ادخل النار من کان اسمہ احمد او محمد۔

ترجمه: (الله تعالیٰ فرمائی) ماپه خپل ځان باند سوګند خوړلے دے چه دچا نوم احمد یا محمد وی هغه به دوزخ ته نه داخلومه۔

علامه ابن جوزی دے روایت ته بے اصل او موضوع وئیلے دی۔

(الموضوعات ۱: ۲۴۱)

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: داروایت موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۳۰۹)

2. ابوحنیفۃ سراج امتی۔

ترجمه: ابوحنیفه ځمادامت چراغ دے۔

ملاعلی قاری د دے روایت په باره کښی لیکلی دی چه: داروایت دټولو محدثینو په نزد موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۴۷)

3. اتق شرمن احسنت الیہ۔

ترجمه: چه دچاسره احسان اوکړے د هغه د شر نه ځان ساته۔

ملاعلی قاری د دے روایت په باره کښی لیکلی دی چه: حافظ سخاوی فرمائی چه ځه دا نه پیژنم، کیدے شی چه داد بعضِ بزرګانو دقول په شان وی۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۵۰)

4. اذااغتاب الصائم فقدافطر۔

ترجمه: کله چه یو روژه دار غیبت اوکړی نو دده روژه ماته شوه۔

حافظ زیلعی ددے په باره کښی فرمائیلی دی چه: د غیبت په وجه چه دروژے دماتیدو متعلق څومره روایات دی، هغه ټول موضوع دی۔

(نصب الرایة ۲: ۴۸۲، بحواله المجموعة فی الاحادیث الضعیفة والموضوعة ۱: ۲۳۰)

5. اذاتحيرتم فی الامورفاستعینواباهل القبور۔

ترجمه:کله چه تاسوپه کارونوکښې حیرانه شئ نودقبرونووالونه مددغواړے،

مفتی رضاءالحق صیب ددے روایت په باره کښې لیکلے دی چه:دا موضوع دے۔ (فتاویٰ دار العلوم زکریا:۱: ۵۰۲)

شاه عبدالعزیز محدث دهلوی ددے روایت په باره لیکلی دی چه:داحدیث نه دے بلکه دیوبزرګ قول دے۔چه ددے مختلفے معنئ کیدے شی،یو معنی پکښے داده:چه کله دیوڅیزپه حلال والی یاحرام والی کښې متعارض دلائل وی یعنی دبعضِ دلائلو نه ئے حلت اودبعضِ نه ئے حرمت ثابتیږی اوتاسوپکښې حیرانه ئے چه په کوم دلیل باندعمل اوکړونوپکارده چه تاسو خپل اجتهاد پریږدے،اودوفات شوؤبزرګانوتقلید اوکړے۔دامعنیٰ حق ته زیاته موافق ده،اودامعنیٰ دسیدناعبد الله بن مسعود رضی الله عنه اود سفیان ثوری نه منقول ده۔ (فتاویٰ عزیزی،باب التصوف:۱۵۷)

6. اذاجلس المتعلم بین یدی العالم فتح الله علیه سبعین بابا من الرحمة ، ولایقوم من عنده الاکیوم ولدته امه،اعطاه الله بکل حرف ثواب ستین شهیداً،وکتب الله بکل حدیث عبادة سنة

ترجمه:کله چه یوطالب علم یوعالم ته(دسبق زده کولودپاره)کینی،نو الله تعالیٰ دده دپاره درحمت اویادروازے پرانځی،اوکله چه دے ددغه عالم نه پاڅی نو(دګناهونونه به)داسے پاک وی لکه چه دے اوس

دمور نه پيداشوے وی،اوده ته به الله تعالیٰ په هرحرف باندِدَشپيتوشهيدانوبرابرثواب ورکوی۔

ملاعلی قاری ددے روايت په باره کښی ليکلی دی چه:داروايت موضوع دے. لکه څنګه چه په ذيل نومے کتاب کښی دی۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۵۴،تذکرة الموضوعات: ۱۴۲)

7. اذاحُدِثتم عنی حديثايوافق الحق فخذوابه،حدثتُ به اولم احدث به۔

ترجمه: کله چه تاسوته ځما دطرف نه يوحديث بيان شی، چه هغه دحق په شان وی نو قبول ئے کړے،که ما بيان کړے وی او که نه۔

امام عقيلی ددے روايت په باره کښی ليکلی دی چه:ددے صحيح سند نيشته دے،ددے راوی اشعث بن بَراز هُجَيمِی دےچه دهغه روايتونه منکر وی۔ (الضعفاء الکبير،۱:۳۳)امام نسائی ده ته متروک الحديث ،امام دارِقطنی،حافظ ابن حجراوحافظ ذهبی ده ته منکروئيلی دی۔ (بحواله المجموعة فی الاحاديث الضعيفة والموضوعة،۱: ۲۴۵)

8. اذارايتم معاوية علی منبری فاقتلوه (تاريخ بغداد۱: ۱۲)

ترجمه: کله چه تاسو معاويه ځماپه منبر باندِاووينے نواوئے وژنے۔

امام جورقانی وائی چه داروايت موضوع اوباطل دے ،صحيح احاديثو کښی ددے څه وجود نيشته دے،داوضع شوےدے۔داد زنديقانوعقيده ده۔

(الاباطيل والمناکير۱:۲۰۰، ۲۰۱،بحواله المجموعة فی الاحاديث الضعيفة والموضوعة۱: ۲۵۸)

9. اذارُش الماءعلی قبورالاقرباءفی یوم العاشورةکفرعن المیت عشرةآلاف ذنوبه واعطی الله له عشرةآلاف درجة وقال جابران بلال رش الماء علیٰ قبره علیه السلام۔ (جواهرالنفیس:۱۰۶)

ترجمه:کله چه دعاشورے په ورځ د خپلوانوپه قبرونو باندِ اوبه واچولے شی۔

نودهغے مړی نه لس زره ګناهونه وُرِژیږی، الله تعالیٰ هغه له لس زره درجے اوچتوی،اوجابر فرمائیلی دی چه بلال به د رسول الله ﷺ په قبر باندااوبه اچولے۔

مفتی محمد فرید صیب دے روایت ته موضوع وئیلے دی۔

(فتاویٰ فریدیه؛کتاب مایتعلق بالحدیث و السنة ،۱: ۲۷۲)

10. اذاعطس الرجل عندالحدیث فهوصدِق۔

ترجمه:کله چه یو سړے دخبروکولوپه مینځ کښی پرنجے اوکړی،نودادرشتیا والی نخښنه ده۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښی لیکلی دی چه: داروایت اګرچه بعضِ خلقودسندپه اعتبارسره صحیح ګرزولے دے،لیکن ددے وضع په حس سره معلومیږی،ځکه چه مونږمشاهده کوؤچه یوتن پرنجے هم کوی اودروغ هم وائی۔که چرے یولاکھ سړی رسول الله ﷺ ته منسوب دیوروایت دوران کښی پرنجے اوکړی نوپه دے وجه په دےغ روایت باندِدَصحیح والی حکم نه جاری کیږی،دغه شان که چادیوتن دګواهیئ په وخت کښی پرنجے اوکړونوپه هغے دصداقت حکم نه شی جاری کیدے۔(الموضوعات الکبریٰ:۲۹۹)

11. اذا کنت علی الماء فلا تبخل بالماء۔

ترجمه: کله چه ته داوبوپه خوا کښې ئے نو په اوبو(ورکولو) کښې بخل مه کوه۔

ملا علی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: قال السخاوی: لم اقف علیہ یعنی ماته ددے پته نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۵۷)

12. الارضون سبع، فی کل ارض نبی کنبیکم۔

ترجمه: زمکے اووه دی، په هره زمکه کښې ستاسودنبی په شان نبی رالیږلے شوے دے۔

ملا علی قاری لیکلی دی چه: دااوددے په شان نورروایتونه، چه کله ددے سندیومعصوم راوی ته صحیح نه وی، نوداپه خپل وئیونکی باندِ مردود وی۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۵۸)

13. اعمالکم عمالکم۔

ترجمه: ستاسو عملونه په تاسو مشری کوی۔

مفتی رضاءالحق صیب ددے روایت په باره کښې لیکلے دی چه دا حدیث نه دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم زکریا، ۱: ۵۳۰)

14. اکل الطین حرام علیٰ کل مسلم۔

ترجمه: خاوره خوړل په هر مسلمان باندحرام دی۔

امام بیهقی فرمائی: دخاورے په حرمت باندډیرحدیثونه روایت دی، خو هغه ټول نه دی صحیح، نوروخلقوهم په دے معامله کښې دده اتباع کړے ده۔ هم دغه شان حافظ سخاوی ذکر کړے دی۔

اوامام زرکشی وئیلے دی چه: دخاورے خوړلو متعلق احادیث نه دی صحیح۔ (الموضوعات الکبریٰ:٦٦)

15. الاان اولیاء الله لایموتون-------الخ

ترجمه: خبردار (شئ) بے شکه د الله تعالیٰ دوستانو باند مرګ نه راځی۔

مفتی محمدتقی عثمانی صیب ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه :

"داالفاظ داحادیثو په هیڅ مجموعه کښې مونږته ملاؤ نه شول، تردے چه د موضوع روایاتو په مجموعةاللآلی المصنوعة فی الاحادیث الموضوعة(للحافظ السیوطی)اوالاحادیث الموضوعة(للشوکانی)کښې هم داروایت نیشته دے، معلومیږی چه دادچامقوله ده حدیث نه دے۔" (فتاویٰ عثمانی، ۲۲۷:۱)

16. السنة الخلق اقلام الحق۔

ترجمه: دمخلوق ژبے د حق قلمونه دی۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلے دی چه: ددے هیڅ اصل نیشته دے، لکه څنګه چه ابن الدبیع ذکر کړے دی۔

(الموضوعات الکبریٰ:67، المجموعه:344)

17. اللهم ارحم خلفاءنا۔قلنایارسول الله ﷺمن خلفاء ک؟قالﷺ الذین یاتون من بعدی یروون احادیثی وسنتی ویعلمونهاالناس۔

ترجمه: اے الله ځماپه خلفاؤباندرحم اوکړے۔مونږتپوس اوکړوچه ستاسو خلفاءڅوک دی؟هغویﷺاوفرمائیل چه: هغه خلق چه ځمانه پس به پیدا کیږی، ځمااحادیث اوځماسنت به روایت کوی او خلقوته به دهغے تعلیم ورکوی۔

حافظ زیلعی ددے روایت په باره کښې لیکلے دی چه: داموضوع دے۔ چه احمدبن عیسیٰ وضع کړے دے۔ (نصب الرایه۳۴۸:۱)

حافظ ذهبی دے روایت ته باطل وئیلے دی۔ (میزان الاعتدال،۱: ۱۲۷)

18. اللهم اید الاسلام باحدالعمرین۔

ترجمه: اے الله اسلام له ددوو عمرو نه په یو عمرسره برے ورکړے۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: ددے روایت په دے الفاظوسره هیڅ اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:٦٧)

19. ان العالم والمتعلم اذامراعلیٰ قریة فان الله تعالیٰ یرفع العذاب عن مقبرة تلک القریةاربعین یوما۔

ترجمه: بے شکه یوعالم یاطالب علم چه په یوعلاقه باندتیریږی نو الله تعالیٰ ددغ علاقے دمقبرے نه ترڅلویښتو ورځوپورے عذاب پورته کوی۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: حافظ جلال الدین فرمائی چه ددے اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:٧٤)

20. ان الناس یوم القیامة یدعون بامهاتهم لا با بائهم۔

ترجمه: بے شکه دقیامت په ورځ به خلق دمیاندوپه نامه رابللے شی، د پلارانوپه نامه نه۔

ملاعلی قاری رح ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: داروایت باطل دے۔ څه وایم چه محمد بن کعب دبامهاتهم په ځائے بامامهم وئیلے دی۔ (الموضوعات الکبریٰ:٣٧٠)

21. ان النوم بعدالصبح یورث الغفلة،والنوم بعدالاشراق یورث الغناء، والنوم بعد العصر یورث الجنون،والنوم بعد المغرب یورث النسیان۔

ترجمه:دسحر دنمونځ نه پس اوده کیدلوسره غفلت،داشراق نه پس اوده کیدوسره مالداری،د ماځیګر نه پس اوده کیدو سره لیونتوب اودماښام نه پس اوده کیدو سره نسیان پیدا کیږی۔

فتاویٰ دارالعلوم دیوبند کښی دی چه دا حدیث نه دے۔

(ایمان کا بیان،۲۱۰:۱۸)

22. ان الورد خلق من عرق النبیﷺ،او من عرق البراق۔

ترجمه:بے شکه دګلاب ګل درسول الله ﷺ دخوَلے،یادَبُراق دخوَلے نه جوړ کړے شوے دے۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه:امام نووی فرمائی چه:دا روایت صحیح نه دے،امام عسقلانی دے ته موضوع وئیلے دی۔امام زرکشی وائی چه داروایت په مختلفوطرقُ سره په مسند فردوس اودابن فارس په کتاب الریحان کښی موجوددے۔

(الموضوعات الکبریٰ:۸۱)

23. ان یوم عرفة اذا وافق یوم الجمعة کان حج الاکبر۔

ترجمه: کله چه عرفه دجمعے په ورځ راشی نودغه حج حجِ اکبروی۔

مولاناعبدالرحمٰن مبارک پوری ددے روایت متعلق لیکلی دی چه:ددے هیڅ اصل نیشته دے۔(تحفة الحوذی،۴:۳۱)علامه ابن عابدین شامی رحمه الله ددے روایت متعلق لیکلی دی چه:رزین بن معاویه په "تجرید الصحاح "کښی ددے تخریج کړے دے،لیکن

مناوی دبعضِ حفاظونه نقل کړے دی چه دا حدیث باطل او بے اصله دے۔البته امام غزالی په احیاءعلوم الدین کښی ذکر کړے دی چه:دبعضِ سلفوارشاددے چه کله دجمعے په ورځ عرفه راشی نودټولو(عرفے والو)ګناهونه بخښیلے شی۔

(ردالمختار،مطلب فی فضل وفقة یوم الجمعة،۴:۴۷)

24. اناعرب بلا عین،انا احمد بلامیم۔

ترجمه: ځه بغیر دعین نه عرب یم،او بغیر دمیم نه احمدیم۔

فتاویٰ دارالعلوم دیوبند کښی دی چه دا باطله مقوله اودروغ اوبهتان دے۔ ددے مطلب خوداشوچه ځه یواځے الله اورب یم،معاذالله،رسول الله دا سے چرته وئیلے دی،په هغوی دِدَالله تعالیٰ لعنت وی چاچه داقسمه دروغ جوړ کړے دی اوهغه ئے رسول اللهﷺ ته منسوب کړے دی۔

(کَبُرَتْ کَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ؕ اِنْ یَّقُوْلُوْنَ اِلَّا کَذِبًا)

(ایمان کا بیان۱۸: ۲۱۰، ۱۱)

25. انامدینۃالعلم وابوبکرؓ اساسهاوعمرحیطانها وعثمان سقفها وعلی بابها۔

ترجمه:زه دعلم ښار یمه،ابوبکر رضی الله عنه ئے بنیاد دے،عمر رضی الله عنه ئے دیوالونه دی عثمان رضی الله عنه ئےچهت دے اوعلی رضی الله عنه ئے دروازه ده۔

حافظ سخاوی ددے روایت متعلق لیکلی دی چه:دا بے اصله روایت دے۔

(المقاصد الحسنه:۱۱۵)

مفتی نجم الدین امروهوی هم دے روایت ته باطل وئیلے دی۔

(نجم الفتاویٰ،۱:۴۰۶)

مفتی غلام الرحمان صیب دے روایت ته موضوع او باطل وئیلے دي۔

(فتاویٰ عثمانیه،مایتعلق بالقرآن والسنة،۱:۲۳۱)

26. انا من نورالله والمؤمنون منی۔

ترجمه: زه دالله تعالیٰ دنور نه یم او مؤمنان زما دنور نه دی۔

ملا علی قاری دے روایت ته موضوع وئیلے دی۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۷۳)

فتاویٰ حقانیه کښې هم دے روایت ته موضوع وئیلے شوے دی۔

(کتاب ما یتعلق بالاحادیث، ۲: ۲۲۲)

27. اوتیت علم الاولین والآخرین۔

ترجمه: ما ته د مخکښنو اودوروستنو قومونو علم را کړے شوے دے۔

دا حدیث نه دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم دیوبند، ۱۸: ۲۰۰، ایمان کا بیان)

28. اول ما خلق الله نوری۔

ترجمه: د ټولو نه ړومبئ الله تعالیٰ زما نور پیدا کړو۔

امام سیوطی ددے روایت په باره فرمائی چه: لیس له اسناد یعتمد علیه۔ (الحاوی ۳۲۵)

یعنی ددے سند قابل اعتبار نه دے۔ دغه شان مفتی رضاء الحق صیب لیکلے دی چه: دا روایت موضوع دے۔

(فتاویٰ دارالعلوم زکریا: ۳۹۳)

فتاویٰ دارالعلوم دیوبند کښې دی چه دا حدیث نه دے۔

(ایمان کا بیان، ۱۸: ۲۱۶)

29. اَلبَاذَنجَانُ لِمَا اُکِلَ لَهُ۔

ترجمه: باتینګړ د هغه څه د پاره دي چه د څه د پاره او خوړلے شی۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلی دی چه:ددے څه اصل نیشته دے ، یعنی دا روایت موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:۸٦)

30. البخیل عدو الله ولو کان راهباً۔

ترجمه:بخیل د الله دشمن دے،که دے راهب (دین داره )ولے نه وی۔

ملا علی قاری فرمائی چه ددے څه اصل نیشته دے۔

(الموضوعات الکبریٰ:۸۸)

31. البرد عدوالدین۔

ترجمه:یخنی(ساړه)ددین دشمنه ده۔

ملا علی قاری فرمائی چه دا حدیث نه دے ،بلکه دادیولوی عالم سعید بن عبد العزیز دمشقی قول دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:۸۸)

32. بنی الدین علی النظافة۔

ترجمه: ددین اسلام بنیاد په صفائ باندے۔ (احیاء العلوم ،۱: ۱۲۴)

ملاعلی قاری ددے متعلق لیکلی دی چه: دا روایت موضوع دے۔

(الموضوعات الکبریٰ:۹۱)

33. ترک العَشَاءِ مهرمة ،ای مظنة للهرم۔

ترجمه: د ماسخوتن ډوډئ نه خوړلوسره بوډاوالے راځی۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه:علامه قتیبی فرمائی چه: داکلمه دعواموپه ژبوباندجاری شوے ده ماته علم نیشته چه رسول الله ﷺ دافرمائیلی دی یادهغوی په مخښکی وئیلی شوے دی ۔هم دغه شان په نهایه نومے کتاب کښی لیکلے شوی دی۔

(الموضوعات الکبریٰ:۹۴)

34. تفكرساعة خيرمن عبادة ستين سنة۔

ترجمه: دیو ساعت فکر دشپیتو کالو دعبادت نه غوره دے۔

ددے روایت په باره کښې ملاعلی قاري لیکلی دی چه: ددے هیڅ اصل نیشته دے۔ (المصنوع: ۹۴)

35. حب الهرة من الايمان۔

ترجمه: پیشوسره مینه کول دایمان حصه ده۔

ملاعلی قاری ددے روایت ته موضوع وئیلے دی۔(الموضوعات الکبریٰ:۱۹۱)

36. حُبُّ الوَطَنِ مِنَ الاِيمَانِ۔

ترجمه: دوطن مینه دایمان حصه ده۔

ددے روایت په باره کښې ملاعلی قاری لیکلی دی چه: ددے هیڅ اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:۱۰۹)

حافظ سخاوی ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: داروایت موضوع دے۔ (المقاصد الحسنة:۱۸۹)

مفتی فرید صیب ددے په باره کښې لیکلی دي چه دا حدیث نه دے۔ (فتاویٰ فریدیه،۱: ۲٦٦)

37. الحديث فى المسجد ياكل الحسنات كما تاكل النارالحطب۔

ترجمه: په جمات کښې خبرو کولو سره نیکئ داسے سوزی لکه چه څنګه اورسره خشاک سوزی۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: داروایت موضوع دے۔ (المصنوع:۹۲)

38. الحمد لله رداءالرحمٰن۔

ترجمه: الحمد للّٰه د مهربان رب څادر دے۔

ددے روایت په باره کښې ملاعلي قاري ليکلي دي چه ددے هيڅ اصل نيشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۱۱۴)

39. الحسود لا يسود۔

ترجمه: حاسد به چرے سودمند نه شي۔

ددے روایت په باره کښې ملاعلي قاري ليکلي دي چه: دا دبعضِ مشرانو قول دے، لکه څنګه چه په رساله القشيريه کښې ليکلے شوے دی۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۱۱۳)

40. اَلدُّنیَا مَزرَعَۃُ الآخِرۃِ۔

ترجمه: دنيا د آخرت پټے دے۔

ددے روایت په باره کښې ملاعلي قاري ليکلي دي چه: دا روايت موضوع دے۔ (المصنوع: ۱۰۱)

41. الدنيا جِيفۃٌ وَطَلّابُها كِلابٌ۔ (حلیۃ الاولیاء)

ترجمه: دنيا مرداره ده او ددے طالبان سپي دي۔

ددے روایت په باره کښې مفتي شبيراحمد قاسمي ليکلي دي چه: دا موضوع روايت دے۔ (فتاویٰ قاسمیه، ۴: ۲۵۹)

دغه شان مولانا اسماعيل بن محمد هم ليکلي دي۔

(کشف الخفاء، ۱: ۴۳۴)

42. سبحان من زين الرجال باللحیٰ والنساءبالذوائب۔

ترجمه: پاک دے هغه رب چه ښائسته کړے دي نارينه په ږيرو سره او زنانه په کونسو سره۔

مفتی رضاء الحق صیب ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: دا روایت موضوع دے۔ (فتاویٰ دار العلوم زکریا، ۱: ۵۱۶)

43. السخی حبیب الله ولوکان فاسقا۔

ترجمه: سخی دالله دوست دے اگر که دے بے دینه وے نه وی۔

دادحدیث الفاظ نه دی البته دترمذی شریف په یوروایت کښی ددے په شان الفاظ موجوددی۔السخی قریب من الله، قریب من الجنة، قریب من الناس ، بعیدمن النار۔۔۔۔۔۔

(جامع الترمذی، ج۲، ص۱۷، ابواب البر والصله)

(فتاویٰ دار العلوم دیوبند، ۱: ۲۰۵)

44. السواک یزیدالرجل فصاحة۔

ترجمه: د مسواک استعمال سره د سړی فصاحت زیاتیږی۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: امام الصغانی فرمائی چه ددے روایت وضع ښکاره ده۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۱۳۶)

45. سؤرالمؤمن شفاء۔

ترجمه: د مؤمن په جوټه کښی شفا ده۔

ملاعلی قاری ددے روایت په حوالے سره لیکلے دی چه: قال العراقی هکذا اشتهر علی الالسنه ولا اصل له بهذااللفظ۔ (المصنوع: ۱۴) یعنی عراقی فرمائیلی دی چه دغه شان دخلقو په ژبوباندِمشهورشوے ده۔په دے لفظ سره ددے هیڅ اصل نیشته دے۔

مفتی محمد فرید صیب لیکلی چه: داحدیث نه دے۔

(فتاویٰ فریدیه، ۱: ۶۰۸)

46. الشكر في الوجه مَذمةٌ۔

ترجمه: مخامخ د چاشکریه اداکول ناکاره کار دے۔

ملا علی قاری فرمائیلی دی چه دا حدیث نه دے۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۱۴۲)

47. صلوٰة بخاتم تعدل سبعين بغيرخاتم۔

ترجمه: گوتمے سره نمونځ کول بغیر د گوتمے د اویا نمونځونو برابر ثواب لری۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: دا روایت موضوع دے، لکه څنګه چه علامه ابن حجرعسقلانی فرمائیلی دی۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۱۴۷)

48. الصلوٰة خلف العالم باربعة آلاف واربع مائة واربعين۔

ترجمه: په عالم پسے نمونځ کول یو په څلورزره څلورسوه اوڅلویښت درجے ثواب دے۔

ملاعلی قاری دے روایت ته باطل وئیلے دی۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۱۴۷)

49. الصلوٰة في عمامة افضل من سبعين صلوٰة من غيرعمامة۔

ترجمه: پگړے سره نمونځ کول د بغیر پگړے د نمونځ کولو نه یو په اویا درجے غوره دے۔

حافظ سخاوی دے روایت ته موضوع وئیلے دی۔

(المقاصد الحسنه: ۳۱۳)

مفتی رضاءالحق صیب لیکلے دی چه: دا روایت ډیر ضعیف بلکه موضوع دے۔ (فتاویٰ دار العلوم زکریا، ۱: ۴۲۳)

50. صغروا الخبز وا كثروا عدده يبارک لکم فیہ۔

ترجمه: ډوډئ وړه ګوَ ے،او دد ے نه ډېر ے نوړ ے جوروئ، ستاسو دپاره به په د ے کښې بر کت وی۔

ملا علی قاری دد ے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: اسناده واه ،یعنی دد ے دسند هیڅ اصل نیشته د ے۔ علامه ابن جوزی، زرکشی او امام نووی د ے ته موضوع وئیلے دی۔ (الموضوعات الکبریٰ:۱۴۶)

51. طعام البخیل داء، وطعام السخیِ شِفاء۔

ترجمه: د بخیل طعام خوړل بیماری ده، او د سخی طعام شِفاده۔

ملا علی قاری دد ے روایت په باره کښې لیکلی دی چه دا روایت باطل د ے۔ (الموضوعات الکبریٰ، ۱۵۳)

52. العلم علمان، علم الادیان و علم الابدان۔

ترجمه: علم په دوه قسمه د ے،یو دِینونو علم د ے او بل دبدنونو علم۔

ملا علی قاری دد ے روایت متعلق لیکلے دی چه: دا روایت موضوع د ے لکه څنګه چه په "الخلاصه" نوم ے کتاب کښې دی۔

(الموضوعات الکبریٰ:۱۶۶)

53. علیکم بدین العجائز۔ (احیاءعلوم الدین،۳: ۷۸)

ترجمه: تاسو بانډِ دبوډئ ګانو په دین عمل کول لازم دی۔

ملا علی قاری دد ے روایت متعلق لیکلے دی چه: دد ے روایت هیڅ اصل نیشته د ے۔ (المصنوع:۲۴)

54. عن ابن مسعودعن النبی سمع رجل یتغنی من اللیل فقال لاصلوۃ له لا صلوۃ له۔

ترجمه: سیدنا ابن مسعود رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه یو سړی د شپې ګانے وئیلے نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دده نمونځ نه کیږی؛ دده نمونځ نه کیږی۔

علامه ابن جوزی ددے روایت متعلق فرمائیلی دی چه: هذاالحدیث لم یصح یعنی دا روایت نه دے صحیح۔ (الموضوعات، ۳: ۱۱۵)

مفتی رضاءالحق صیب ددے متعلق لیکلے دی چه: دا روایت ضعیف دے اود دلیل قابل نه دے۔ (فتاویٰ زکریا، ۱: ۳۹۶)

55. عن عائشة قالت:اومت امرءة من وراءستربیدها کتاب الیٰ رسول الله ﷺ فقبض رسول الله ﷺ یده فقال:ماادریٔیدرجل ام ید امرءة؟ قالت:بل ید امرءة،قال:لوکنتِ امرءة لغیرت اظفارکِ (بالحناء) (سنن ابی داؤد، ۲: ۵۷۴)

ترجمه: دعائشه نه روایت دے، چه یوے ښځے دپَردَے دشانه رسول الله ﷺ ته اشاره اوکړه، چه د هغے په لاس کښی خط وه۔رسول الله ﷺ خپل لاس راغونډ کړواو وئے فرمائیل چه ما ته څه پته ده چه دا دسړی لاس دے اوکه دښځے؟ هغے اوؤئیل چه دښځے۔رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که چرے ته ښځه وے نوستا لاسونه به په نکریزو رنګ وو۔

دا روایت مجهول دے۔محققینو ددا سے روایتونو په باره کښی لیکلی دی چه: احادیث الحناءکلها ضعیفة اومجهولة۔یعني دنکریزوپه باره کښی دا سے قسمه حدیثونه ټول ضعیف یا مجهول دی۔

(الاثارالمرفوعة: ۱۰۲،الموضوعات الکبریٰ:۴۸٦)

56. الفَقرُ فَخرِی وبہ افتخر۔

ترجمه: غریبي ځما فخر دے اوپه دے باندِ ځه فخر کوم۔

حافظ سخاوی ددے روایت په باره کښې لیکلي دي چه:داروایت موضوع دے۔ (المقاصد الحسنه:۳۰۷)

دغه شان امام ابن حجرعسقلاني لیکلي دي چه داروایت باطل اوموضوع دے۔علامه ابن تیمیه ورته هم دروغ وئیلے دي۔

(الموضوعات الکبریٰ:۱٦٦)

57. فکر ساعة خیر من عبادة ستین سنة۔

ترجمه: دیوساعت فکرکول د شپیتوکالودعبادت نه غوره دے۔

ملاعلي قاري ددے روایت په باره کښې لیکلي دي چه:داروایت موضوع دے۔ الموضوعات الکبریٰ:۹۷، کشف الخفاء،۱: ۳۷۰)

58. قال رسول الله امان لامتی من الغرق اذارکبوافی السفینة ان یقولوا بسم الله مجرهاومرسٰها ان ربی لغفورالرحیم۔وماقدرو الله حق قدره و الارض جمیعاقبضته یوم القیٰمةوالسمٰوات مطویات بیمینه سبحانه وتعالی عما یشرکون۔

(عمل الیوم واللیله لابن سنی: ۱۳۴،باب مایقول اذارکب سفینة)

ترجمه:رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه ځما امت به دغرقیدونه محفوظ وي ،کله چه دوی کشتۍ ته دختو په وخت کښې دادعااووائي:بسم الله مجرها و مرسٰها ------الخ

مفتي رضاءالحق ددے روایت متعلق لیکلي دي چه دا روایت ناقابل اعتباره دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم زکریا،۱: ۳۸۹، ۹۰)

59. قراءة سورة القلاقل امان من الفقر۔

ترجمه: چارقُل سورتونو تلاوت کولو سره غربت ختمیږی۔

ملاعلی قاری فرمائی چه:لا اصل له یعنی ددے هیڅ اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۱۷۰)

60. کل قصیرشریرالاعلیؓ وکل طویل احمق الاعمرؓ۔

ترجمه: هرکوتاه قد والا شریروی سِوَادَعَلِی رضی الله عنه نه،اوهرلوی قد والا کم عقل وی سِوَادَعُمر رضی الله عنه نه۔

مفتی محمود الحسن ددے متعلق لیکلی دی چه داحدیث نه دے۔

(فتاوی محمودیه، ۲۷۲:۷)

مفتی شبیر احمد قاسمی هم دے ته موضوع وئیلے دی۔

(فتاویٰ قاسمیه، ۴: ۲۶۳)

61. کنت کنزامخفیافاحببت ان اعرف نخلقت خلقا۔

ترجمه: ځه پټه خزانه وؤمه نومآداخوخه کړه چه ځه اوپیژندے شمه نو مخلوق مِ پیدا کړو۔

حافظ سخاوی لیکلی دی چه: دا روایت موضوع دے۔

(المقاصدالحسنة: ۳۳۴)

مفتی نجم الحسن هم دے ته موضوع وئیلے دی، نجم الفتاویٰ،۱: ۴۰۵)

62. لا تجعلوابطونکم مقابرالحیوانات۔

ترجمه: خپلے خیټے دځناورودپاره مقبرے مه جوړ وے۔

فتاویٰ دارالعلوم دیوبند کښی دی چه: داحدیث نه دے۔

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند،۱۸: ۲۱۵، کتاب الایمان)

63. لاتنكحواالقرابة القريبة فان الولد يخلق ضاويا۔

ترجمه: په نزدے رشته کښې واده مه کوئ ځکه چه ماشوم معذوره پیدا کیږی۔

مفتی نجم الحسن ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: دا روایت دځان نه جوړ کړے شوے دے۔ (نجم الفتاویٰ،۱: ۴۰۸)

64. لافتیٰ الا علی ولاسیف الا ذوالفقار۔

ترجمه: دعلی رضی الله عنه په شان بل نوجوان نیشته او د ذوالفقار په شان بله توره نیشته۔

ملا علی قاری ددے روایت په باره کښې فرمائی چه(لا اصل له) ددے اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۶۵)

65. لا نكاح بين العيدين۔

ترجمه: ددو اخترونو په مینځ کښې نکاح کول نه دي جائز۔

مفتی رشیداحمد لدهیانوی ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلے خوږے بی بی سیده عائشه صدیقه سره نکاح دشوال په میاشت کښې کړے دے، اوپه دغه میاشت کښې ئے رخصتی هم شوے ده۔ دا حدیث صحیح نه دے۔

(احسن الفتاویٰ؛ کتاب التفسیر والحدیث۱: ۵۰۳)

66. لَو كَانَ الخَضِرُ حيًّا لزارَنى۔

ترجمه: که چرے حضر علیه السلام ژوندے وے نو خامخا به ئے ماسره ملاقات کړے وے۔

ملا علي قاري ددے روایت په باره کښې فرمائي چه ددے څه اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ، صفحه ۱۹۳) دسیدنا حضر علیه السلام دژوند متعلق ټول احادیث موضوع دی۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۱۹۳)

67. لولا علي لهلک عمر۔

ترجمه: که چرے سیدنا علي رضي الله عنه نه وے نو سیدنا عمر رضي الله عنه به هلاک شوے وو۔

ددے روایت متعلق علامه ابن تیمیه لیکلی دی چه: ان هذه الزیادة لیست معروفة في هذاالحدیث (دا اضافه په دےحدیث کښې غیر معروف ده)۔ (منهاج السنن، ۶:۴۵)

مفتي رضاء الحق صیب هم دا باطل ګڼړی۔

(فتاویٰ دارالعلوم زکریا، ۱:۴۶۶)

68. لَولَاکَ ما خَلَقت الاَفلاکَ

ترجمه: که چرےته نه وے پیدانومابه دااسمانونه نه وؤپیدا کړے۔

فتاویٰ دارالعلوم دیوبند کښې دی چه داحدیث نه دے اونه دحدیثوپه یو کتاب یعنی په صحاح سته وغیره کښې لیکلے شوے دے

(جلد۱۸، ص۱۹۷، ایمان کا بیان، حدیث)

مفتي نجم الحسن امروهوی لیکلی دی چه دا روایت د الفاظو په اعتبار سره موضوع دے خومعنی په اعتبار سره صحیح دے۔

(نجم الفتاویٰ ، فصل ما یتعلق بتحقیق الروایات، ۱: ۴۰۰)

فتاویٰ حقانیه کښې دي(ترجمه)"اګرچه ددے حدیث په باره کښې محدثینو کلام کړے دے لیکن د معنی اومضمون په اعتبارسره داثابت دے۔ او دا یو داسے حقیقي خبره ده چه دنورو روایتونونه ثابته ده۔چه کوم عالمان ددےنه انکار کوی هغه دالفاظوپه باره کښې دے د معنی په باره کښې نه دے۔لکه څنګه چه ملا علی قاری لیکلے دی۔

"اګرچه علامه صغانی دے ته موضوع وئیلے دی خو د معنی په اعتبار سره ثابت دے۔" (فتاویٰ حقانیه جلد۱ صفحه۲۰۳ کتاب مایتعلق بالحدیث)

مفتی محمدفرید صیب ددی روایت په حوالے سره لیکلی دی چه:اکثر عالمان فرمائی چه داالفاظ موضوع دی لیکن دامضمون دنوروروایتونونه ثابت دے۔"

(فتاویٰ فریدیة، کتاب مایتعلق بالحدیث والسنة ،۱: ۲۶۰)

مفتی غلام الرحمان صیب ددے روایت الفاظو ته موضوع اومضمون ته ئے صحیح وئیلے دی۔

(فتاویٰ عثمانیه ، مایتعلق بالقرآن و الحدیث ،۱: ۲۲۵)

مفتی رشید احمد لدهیانوی صیب ددے روایت متعلق لیکلی دی چه؛ "حدیث لولاک دظاهری الفاظوپه اعتبارسره موضوع دے لیکن دحقیقت، اصل اومعنی په اعتبارسره صحیح دے دامضمون د نورواحادیثونه ثابت دے۔

(احسن الفتاویٰ ،کتاب التفسیر والحدیث، ۱: ۴۸۵)

امام حاکم ددے روایت دمضمون په شان یوحدیث نقل کړے دے۔

"یاآدم یاآدم لولا محمد ماخلقتک۔"

(رواه الحاکم وصححه البیهقی والطبرانی)

دغه شان په یو بل حدیث کښې دی چه:

"ان آدم وجمیع مخلوقات خلقوالاجل محمد۔" ( بیهقی)

په یو بل حدیث کښې هم دا سے مضمون نقل شوے دے۔

اوحی الله الی عیسیٰ بن مریم یٰعیسیٰ لولا محمد ماخلقت آدم ولاجنة ولا النار۔ (حاکم،فتاویٰ عزیزی،۱: ۱۲۲،امدادالفتاویٰ، ۴: ۹۷)

69. لَيسَ لِفَاسِقٍ غِيبَةٌ۔

ترجمه: د فاسق غیبت کول ګناه نه دے۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: دادځان نه جوړکړے شوے دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:۱۹۶)

70. ماخاب من استخارولا ندم من استشار۔

ترجمه: چاچه استخاره اوکړه هغه نامراده شوے نه دے اوچاچه مشوره اوکړه هغه ستومانه شوے نه دے۔

حافظ سخاوی ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: دا روایت باطل دے۔ (المصنوع:191)

71. مَا خَلَا جَسَدٌ مِن حَسَدٍ۔

ترجمه: هیڅ یو بدن (انسان) دحسد نه خالی نه دے۔

ملا علی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: دا روایت باطل دے۔ (الموضوعات الکبریٰ۲۰۲)

72. مامن رمان اِلا و یلقح بحبۃ من رمان الجنۃ۔

ترجمه: داسے یوانارهم نیشته دے، مګر دجنت دَدانے نه جوړ کړے شوے دے۔

ملا علی قاری دے روایت ته موضوع وئیلے دی۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۳۰۲)

73. مَا مِن نَبِیٍّ نُبِیءَ اِلَّا بَعدَ الاَربَعِینَ۔

ترجمه: هیڅ یوپیغمبرله نبوت نه دے ورکړے شوےمګر پس دڅلویښتو کالونه۔

ملا علی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: دا روایت باطل دے۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۲۰۵)

74. ما مات رسول الله حتیٰ قراوکتب۔ (سنن الکبری، ۷: ۴۲)

ترجمه: رسول الله ﷺ د لوستلواولیکلونه مخکښی نه وو وفات شوے۔

مفتی رضاءالحق صیب ددے روایت په باره کښی لیکلے دی چه؛دا موضوع او ناقابل استدلال دے۔ (فتاویٰ دار العلوم زکریا،۱: ۴۳۳)

75. ماوسعنی ارضی ولاسماء ی ولٰکن وسعنی قلب عبدی المؤمن۔

(احیاء علوم الدین، ۳: ۱۴)

ترجمه: څه نه په زمکه کښی ځائے کیږمه او نه په آسمان کښی، خودخپل مؤمن بنده په زړه کښی ځائے کیږمه۔

ملا علی قاری ددے روایت په باره کښی لیکلے دی چه: دا روایت باطل دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:۲۰۶)

داحیاءعلوم الدین شارحین لیکی چه ددے الفاظوهیڅ اصل نیشته دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم دیوبند۱: ۲۱۶،ایمان کا بیان)

76. المعدة بيت الداءوالحمية راءس الدواء۔

ترجمه: معده دبیمارے کوردے،اوپرهیز اصل دوائی ده۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښی لیکلے دی چه: دادعربو دطبیب حارث بن کلده کلام دے،درسول الله ﷺ حدیث نه دے۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۲۱۳)

77. من احيا سنتي عند فساد امتي فله اجرمائة شهيد۔

ترجمه: چاچه ځمایوسنت ځمادامت دفسادپه زمانه کښی عملی کړونوهغه له به دسلوشهیدانوبرابراجرورکولے شی۔

مفتی رضاءالحق صیب ددے روایت په باره کښی لیکلی دي چه: کتب حدیث کی ورق گردانی کے باوجود حدیث بالاکے الفاظ دستیاب نہیں ہوئے۔البتہ معنی کے اعتبار سے مندرجہ ذیل (ضعیف)حدیث اس کے بہت قریب ہے؛ عن ابی هريرةَ مرفوعا المتمسک بسنتي عندفسادامتي له اجرشهيد۔

(فتاوی دارالعلوم زکریا،۱: ۲۱۴)

78. من اذن اربعين عامادخل الجنة بغيرحساب ۔ (احياء العلوم،۱: ۲۰۵)

ترجمه: چاچه څلوینبت کاله بانګ اووے هغه به بے حسابه جنت ته داخلیږی۔

امام سبکی ددے په باره لیکلی دی چه(لم اجدلهااسنادا)یعنی مادد ے روایت سند اونه موندو۔ (طبقات الشافعیه الکبریٰ، ۳: ۴۷۸)

مفتي رضاء الحق صيب ددے روایت په باره کښې لیکلي دي چه: ددے څه اصل نیشته دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم زکریا، ۱: ۴۹۳)

79. من استویٰ یوماه فهو مغبون۔

ترجمه: دچا چه دوه ورځے یو شان تیرے شوے نو هغه تاواني دے۔

حافظ سخاوي ددے روایت په باره کښې لیکلي دي چه: دا روایت باطل دے۔ (المصنوع: ۱۷۴)

80. من انتهر صاحب بدعة ملاء الله قلبه امنا وایمانا۔

ترجمه: چاچه بدعتي اورټه نو الله تعالیٰ به دهغه زړه دامن او ایمان نه ډک کړي.

ملاعلي قاري ددے روایت په باره کښې لیکلے دي چه: دا روایت موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۲۳)

من بلغ اربعین ولم یمسک العصا فقدعصیٰ۔

ترجمه: څوک چه څلویښت کاله عمر ته اورسیده، او په کونټی په نه ګرځي نو ده (د رسول الله ﷺ) نافرماني اوکړه۔

ملاعلي قاري ددے روایت په باره کښې لیکلي دي چه: ددے اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۹۹)

81. من تکلم بکلام الدنیا فی المسجد احبط الله اعماله اربعین سنة۔

ترجمه: چاچه په مسجد کښې دنیاوي خبرے اوکړے، الله تعالیٰ به دده د څلویښتو کالو اعمال (نیکئ) برباد کړي۔

ملاعلی قاری ددے روایت متعلق لیکلے دی چه: امام صغانی وئیلی دی چه دا روایت موضوع دے۔ داپه دے وجه چه دادتر کیب اودمعنی په اعتبار سره باطل دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۲۷)

82. من تمسک سنتی عندفسادامتی فله اجرمائه شهید۔

(حلیة الاولیاء،۸: ۲۰۰)

ترجمه: چاچه ځمایوسنت ځماد امت دفسادپه زمانه کښې عملی کړونوهغه له به د سلوشهیدانوبرابراجرورکولے شی۔

ددےروایت په باره کښې مفتی رضاءالحق صیب لیکلی دی چه: اسناده ضعیف جدا؛یعنی ددے سند ډیر زیات ضعیف دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم زکریا،۱: ۴۱۳)

83. من جددقبرااوتمثالا فقد خرج عن الاسلام۔

ترجمه: چاچه قبر یا سَلےتازه کړونوهغه د دین اسلام نه اووته۔

داحدیث نه دے او نه دحدیثو په معتبرکتاب کښې شته دے۔دا موضوع دے۔ (فتاویٰ دارالعلوم دیوبند،۱۸: ۲۱۸)

84. من زارالعلماء فکانمازارنی من صافح العلماء فکانماصافحنی من جالس العلماء فکانماجالسنی ومن جالسنی فی الدنیا اجلس یوم القیامة۔

ترجمه: هغه چاچه علماؤ سره ملاقات اوکړو، لکه ده چه ماسره ملاقات اوکړو اوهغه چاچه علماؤ سره مصافحه اوکړه، لکه ده چه ماسره مصافحه اوکړه، هغه چاچه علماؤ سره ناسته اوکړه، لکه ده چه ماسره ناسته اوکړه، او چا چه ما سره ناسته اوکړه زه به د قیامت په ورځ هغه سره کینمه۔

ملاعلي قاري ددے روايت په باره کښې ليکلي دي چه:ددے راوی حفص بن عمر كذاب دے۔ (الموضوعات الکبریٰ:۳۳۱)

مفتي شبير احمد قاسمي ليکلے دي چه دا روايت موضوع دے۔

(فتاویٰ قاسمیه، ۴: ۲۶۸)

85. من سر المؤمن فقد سرنی ومن سرنی فقد سر الله ۔

ترجمه: چاچه مؤمن خوشحاله کړو نو هغه ځه خوشحاله کړم اوچاچه ځه خوشحاله کړم نو هغه الله تعالیٰ خوشحاله کړو۔

ملاعلي قاري ددے روايت په باره کښې ليکلي دي چه:دا روايت باطل دے۔ (المصنوع:۱۸۵)

86. من صلیٰ فی آخر جمعة من رمضان الخمس الصلوٰة المفروضة فی اليوم و الليلة قضت عنه ما اخل به من صلاة سنة۔

ترجمه:هغه چاچه د رمضان په آخره جمعه کښې پنځه فرض نمونځونه په يو شب وروز کښې اوکړه،نودده ديوکال قضانمونځونه پرے اداشول۔

ملاعلي قاري ددے روايت په باره کښې ليکلي دي چه:داروايت قطعي باطل دے . (الموضوعات الکبریٰ:۳۵۶)

مفتي غلام الرحمٰن هم دے ته قطعي باطل وئيلے دی۔

(فتاویٰ عثمانی، ۱: ۴۸۴)

87. من عرف نفسه فقد عرف ربه۔

ترجمه :هغه چاچه خپل ځان اوپيژنده نو هغه خپل رب اوپيژنده۔

مفتي شبير احمد قاسمي ددے روايت متعلق ليکلے دي چه: ابن تيميه

فرمائیلے دی چه داروایت موضوع دے۔ (فتاویٰ قاسمیه، ۴: ۲۶۹)

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښی لیکلی دی چه: دا موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۳۸)

88. من قال لاالٰہ الا اللہ ،خلق اللہ من تلک الکلمۃ طائرالہ سبعون الف لسان،لکل لسان سبعون الف لغۃ یستغفرون اللہ لہ۔

ترجمه: څوک چه لااله الا الله اووائی، نو الله تعالیٰ ددے کلمے نه یو مرغۍ پیدا کړی چه د هغے اویازره ژبے وی او په هره ژبه کښی ئے اویا زره لهجے وی چه د هغه د پاره په د الله تعالیٰ نه د مغفرت سوال کوی۔

ملا علی قاری ددے روایت متعلق لیکلی دی چه: دادروغ دی یعنی ددے هیڅ اصل نیشته۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۹۸)

89. من قضیٰ صلوٰۃ من الفرائض فی آخرجمعۃ من شہر رمضان کان ذالک جابرا لکل صلوٰۃ فائتہ فی عمرہ الیٰ سبعین سنۃ۔

ترجمه: هغه څوک چه درمضان په آخرئ جمعه کښی ئے قضانمونځ راوګرځو۔ دا دده داویاکالودقضانمونځونودپاره کافی کیږی۔

ملا علی قاری ددے روایت متعلق لیکلی دی چه: دا موضوع دے۔ (المصنوع: ۱۹۱)

90. من کثرت صلوٰتہ باللیل حسن وجہہ بالنہار۔

(سنن ابن ماجه، کتاب اقامة الصلاة)

ترجمه: چه څوک په شپه کښی ډیر نمونځونه کوی، نو دورځے به دده مخ ښائسته وی۔

ملا علی قاری ددے روایت متعلق لیکلی دی چه: داروایت موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۳۴۳)

91. من لبس نعلا صفراءً لم يزل مسروراًمادام لابسها۔

(معجم لابن عربي:۹۴۱)

ترجمه: چاچه زیړپیزار واچولو هغه به تر هغې خوشحاله وی چه ترکیمې ئې اچولے وی۔

مولانا عبد الحئ لکهنوی دے روایت ته موضوع ویئلے دی۔

(الاسرار المرفوعه:۲۲۳)

مفتی رضاءالحق صیب ددے روایت په باره کښی لیکلی دی چه دا روایت موضوع دے۔

(فتاویٰ دارالعلوم زکریا ،کتاب الحدیث والاثار،۱: ۳۵۵)

92. من لبس نعلا صفراءً قل همه۔ (الكشاف للزمخشری ،۱: ۲۷۸)

ترجمه: چاچه زیړ پیزار واغوستو دهغه تکلیفونه به کم شی۔

ملاعلی قاری دےروایت ته موضوع ویئلے دی۔ (الموضوعات الکبیر۱۲۶)

مولانا عبدالحئ لکهنوی هم دے روایت ته موضوع ویئلے دی۔

(الاسرارالمرفوعه:۵۲۳)

مفتی رضاءالحق صیب لیکلی دی چه: دا روایت موضوع دے۔

(فتاویٰ دارالعلوم زکریا، کتاب الحدیث والاثار،۱: ۳۵۶)

93. موتوا قبل ان تموتوا۔

ترجمه: مړه شئ مخکښی ددے نه چه په تاسو باندې مرګ راشی۔

ملاعلی قاری ددےروایت په باره کښی لیکلی دی چه: ددے هیڅ اصل نیشته دے۔ (المصنوع: ۱۹۸)

94. النَّاسُ علیٰ دِینِ مُلُوکِهِم۔

ترجمه: خلق دخپلو سردارانو په دین باندِ وی۔

مولاناعبدالحیٔ لکهنوی لیکلی دی چه: دا روایت موضوع دے۔

(المقاصد الحسنه، صفحه ۴۴۹)

95. النظر الیٰ وجه العالم عبادة۔

ترجمه: دعالِم مخ ته کتل عبادت دے۔

ملاعلی قاری لیکلی دی چه: دا روایت باطل دے۔

(الموضوعات الکبریٰ: ۲۵۳)

96. النظر الی وجه علی عبادة۔

ترجمه: د سیدنا علی رضی الله عنه مخ ته کتل عبادت دے۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: ددے هیڅ اصل نیشته دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۵۳)

97. نوم العالم عبادةٌ۔

ترجمه: دعالِم خوب عبادت دے۔

ملاعلی قاری ددے روایت په باره کښې لیکلی دی چه: دا روایت موضوع دے۔ (الموضوعات الکبریٰ: ۲۵۵)

98. ولد الزنا لایدخل الجنة۔

ترجمه: دزنا نه پیدا شوے کس به جنت ته نه داخلیږی۔

ملاعلی قاری ددے روایت په حوالے سره لیکلے دی چه: لا اصل له یعنی د دے هیڅ اصل نشته دے۔ (المصنوع: ۲۰۴)

مفتی محمد فرید صیب هم دے روایت ته موضوع ویئلے دی۔

(فتاویٰ فریدیه، کتاب مایتعلق بالحدیث السنه، ۱: ۲۷۳)

مولانا ډاکټر سراج الاسلام صيب هم دا روايت په موضوعاتو کښې شمار کړے دے۔ (المجموعه، ۲: ۵۰۳)

فتاویٰ حقانیه کښې دی چه: ددے روايت متعلق د اکثرو محدثينو رائے دا ده چه داحديث موضوعی دےاوحديث په کتابونو کښې ددے دصحت هيڅ ذکر نه ملاويږی۔ (کتاب مايتعلق بالحديث، ۱: ۲۱۱)

99. الولد سر ابيه۔

ترجمه: بچے دپلار رازدار وی۔

قال السخاوی لااصل له۔وقد سبقه الزرکشی بذالک۔حافظ سخاوی فرمائی چه ددے هيڅ اصل نيشته دے۔ (الاسرارالمرفوعه:۲۵۹)

100. ياعلی،اذاتزودت فلا تنس البصل،يا علی اتخذ لک نعلين من حديد ، وافنهما فی طلب العلم،ياعلی ادع بصحيفة ودواة،فاملیٰ رسول الله ﷺ وکتب علی،وشهد جبرائيل،ثم طويت الصحيفة،قال الراوی:فمن حدثکم انه يعلم مافی الصحيفة الا الذی املاهاوکتبهاوشهدهافلاتصدقوه،وهٰذافی المرض الذی توفی فيه۔

ترجمه: اے علی رضی الله عنه: کله چه ته زادِراه اخلے نوپياز مه هيروه،اے علی رضی الله عنه ځان له د اوسپنے څپليۍ جوړے کړه اوهغه دعلم په طلب کښې او سولوه،اے علی کاغذ اودوات راوغواړه،نورسول الله ﷺ املاءاوويله اوعلی رضی الله عنه اوليکله او جبرائيل په شهادت اوکړو بياکاغذاونغښتےشو۔راوی وائی: که چرے تاسو ته څوک دا بيان اوکړی چه ده ته پته ده چه په دے صحيفه کښې څه دی نو د هغه

تصدیق مه کوے،اودادرسول الله ﷺپه مرضِ وفات کښې شوے دی.

حافظ سخاوی،علامه ابن تیمیه اوصغانی لیکلی دی چه:داروایات موضوع دی۔ملاعلی قاری لیکلی دی چه:بعضِ محققین فرمائی چه په"یاعلی رضی الله عنه" سره وارد شوی ټول روایات موضوع دی سِوادد ے حدیث نه"یاعلی رضی الله عنه انت منی بمنزلة هارون من موسیٰ الاانه لانبی بعدی" (الموضوعات الکبریٰ:۲۷۲)

ترجمه:اے علی رضی الله عنه ته ځمادپاره داسے ئے لکه څنګه چه دموسیٰ علیه السلام دپاره هارون علیه السلام وومګرپه حقیقت کښې زمانه پس بل پیغمبر نیشته دے۔



1. **درسول الله ﷺ د کوړے د خوړلو واقعهٔ:**

رسول اللهﷺ ته یو موضوع واقعه منسوب ده چه هغوی له یو پیره یوے بوډے ماشوم راوستواوعرض ئےاوکړوچه اے د الله رسوله ﷺده ته دعااوکړے، دے ګوړه خوری چه صبر شی ترِنه۔هغوي ارشاداوفرمایه چه صباۓ راوله۔صباته بوډئ بیاماشوم راوستونورسول اللهﷺورته او فرمائیل چه بچیه بیا ګوړه مه خوره۔ماشوم اووئیل، چه خه جی۔بوډے رسول الله ﷺته عرض اوکړوچه اے د الله رسولهﷺداخوورته تاسو پرون هم وئیلے شو۔ځماددوباره کړاوڅه ضرورت وو۔رسول اللهﷺ ورته اوفرمائیل چه پرون ماپخپله ګوړه خوړلے وه نوځماپه وینا کښی هغه شان اثر نه وو۔په دے وجه مر نن رااوبللے۔

مفتی غلام الرحمان صیب ددے قیصۍ په باره کښی لیکلی دی چه:داحادیثوپه ذخیره کښی داقسمه واقعه ملاو نه شوه په دے وجه ددے نه ځان ساتل پکار دی۔بے سنده واقعه رسول الله ﷺته منسوب کول خپل ځان په هلاکت کښی اچول دی۔ (فتاویٰ عثمانیه،۱: ۲۲۳)

2. **دسیدنا علی رضی اللہ عنہ د غشی واقعه:**

سیدناعلی رضی اللہ عنہ ته یوموضوع روایت منسوب دے چه:یوواړےد جهادپه دوران کښی ددوی په خپه کښي غشے ننوتے وو۔نوکله چه دوی په نمونځ اودریدلو،نوخلقوترِنه غشے راوباسه اودوي په نمونځ کښی دومره مستغرق ووچه په غشی راوباسلوپوهه نه شو۔

(ارشادالقلوب لحسن بن ابي الحسن الديلمي،۲: ۲۲ ، فضائل اعمال :۳۸۱ )

علامه ابن تیمیه ددے واقعے په باره کښې فرمائي چه دا واقعه دروغ او بهتان دے۔(مجموع الفتاویٰ)مفتي رضاالحق صیب ددے واقعے په باره کښې لیکلی دی چه دا دروغ دی۔

(فتاویٰ دار العلوم زکریا، حظرواباحت سے متعلق متفرق مسائل،۸: ۳۴۴)

3. **د شداد جنت:**

بعضِ خلق وائي چه شداد ځان له په دنیا کښې د الله تعالیٰ د جنت په مقابله کښې یو عالی شان جنت تیار کړے وو۔په هغے کښې ددنیا تمام نعمتونه وو۔کله چه شداد خپل جنت ته ورداخلیدونو الله تعالیٰ دده روح قبض کړو،او دده داجنت ئے محفوظ کړو،اوپه آخرت کښې به ئے دنورو جنتونو په شان مسلمانانو له په انعام کښې ورکوی۔

مفتي محمدفرید صیب ددے قصے په باره کښې لیکلی دی چه:دشداددجنت جوړولو ثبوت په قرآن او سنت کښې نه ملاویږی۔دا یو اسرائیلی قصه ده۔

(فتاویٰ فریدیه، کتاب مایتعلق بالحدیث و السنه،۱: ۲۷۸)

مولاناډاکټرسراج الاسلام صیب ددے روایت متعلق دحافظ ابن کثیر او د قاضی شوکانی په حوالے سره لیکلی دی چه:دا قصهٔ موضوع ده۔ (ضعیف اور بے اصل واساس کہانیاں:۲۳٦)

4. **داصحاب کهف دامام مهدی مدد کول:**

داصحاب کهف په باره کښې مشهوره ده چه دوی به دامام مهدی په دور کښې راژوندی کیږی،اودهغوی مددبه کوی۔ددے نه پس به بیاوفات کیږی۔په تفسیر درمنثوروغیره کښې ددے په باره کښې ضعیف روایتونه لیکلی شوی دی۔بعض خلق داهم وائی چه سیدنا علی رضی الله عنه اصحاب کهف

پسےپه رسول اللهﷺباندايمان راوړلوددعوت دپاره درے کسان اوليږل.

مولانا عبدالعزيزمحدث دهلوی ددے قصئ په باره کښی ليکلے دی چه: ماته ياددی، چه دنزهة العشرية مصنف اونورومحدثينوحکم لګولے دےچه دا روايت موضوع دے. البته په بعضِ ضعيف روايا تو کښی راغلے دی چه دمعراج په شپه رسول الله ﷺداصحاب کهف مقام ته تشريف اوړو، اوهغوی ته ئے داسلام دعوت ورکړو. هغوی اسلام قبول کړواوبياأوده شول او لاتراوسه پورے اوده دی. و الله اعلم. (فتاویٰ عزيزی، باب التفسير: ۶۴)

5. **ديوے بوډے په رسول اللهﷺ باندخزله غورځول:**

داخبره په عوامو کښی ډيره زياته مشهوره شوے ده چه په رسول الله ﷺ باند به يوے بوډے روزانه خزله غورځوله اوهغویﷺ به صبر کولو په ژبه ئے ورته هيڅ هم نه وئيل. څه ورځے پس دا بوډے بيماره شوه نوپه هغوی باندِئے خزله اونه غوززوله. رسول الله ﷺدچانه پوښتنه اوکړه چه په دے لاره کښی به په ماباندِچا خزله غورځوله، څه ورځے داسے نه غورزيږی چه څه وجه ده؟ هغوی ته اوؤئيلے شو چه هغه بوډے خوڅوورځوداسے بيماره ده. رسول اللهﷺدهغے بوډے تپوس له لاړو. د هغوی دےغ روئيے په بوډے باند دومره اثر اوکړو چه هغه مسلمانه شوه.

مفتی شبير احمد قاسمی ددے قصئ په باره کښی ليکلے دي چه دا په يومعتبر کتاب کښی نيشته دے. په بوريا نامه نومے کتاب کښی داقصه ذکرشوےده خو هغه معتبر کتاب نه دے.

(فتاویٰ قاسميه ،باب ما يتعلق بالاحاديث الضعيفه والموضوعه، ۴: ۲۸۰)

6. **دسیدنا عمر رضی اللہ عنہ د بیعت رضوان وؤنه کټ کول:**

داقصه هم دسیرت بعضِ کتابونو لیکلے ده چه: دصلح حدیبیے په موقع باندِ چه رسول الله ﷺ دسیدناعثمان غنی رضی اللہ عنہ دقتل په بدله دصحابه کرامو نه دکیکرد وؤنے دلاندِ بیعت واخستو، نوڅه وخت پس بعضِ خلقو د هغے وؤنے په خواکښې دبرکت دپاره ناسته اوعبادت شروع کړو۔ سیدناعمر رضی اللہ عنہ دغه ؤنه په دے بنیاددویخ نه اوباسله چه هسے نه چه چرته دادشرک بنیاد اوګرځی۔

مفتی نجم الحسن صیب ددے قصے په باره کښې لیکلے دی چه دادروغ دی۔ (نجم الفتاویٰ، کتاب العقائد،۱:۴۷۰)

مولاناډاکټرسراج الاسلام صیب ددے روایت متعلق لیکلی دی چه: د بیعت رضوان وؤنه دصحابه کرامو نه هیره کړے شوه په دے وجه داچاته هم معلومه نه وه۔ (ضعیف اور بے اصل واساس کہانیاں:۲۲۵)

7. **دمعراج نبوی ﷺ په باره کښې یو بے بنیاده واقعه:**

دتاریخ بعضِ کتابونو لیکلی دی چه: کله رسول الله ﷺ دشبِ معراج تفصیل بیان کړونو هلته یو یهودی ناست وو۔ هغه داواقعه نه منله۔ څنګه چه دے درسول الله ﷺ د مجلس نه راپاسیدو، نوپه بازارکښې ئے یو مهے واخستواوخپل کوروالاله ئے ورکړوچه ته داصفا کړه اوپوخ ئے کړه۔ څه دغسل دپاره ځم اوزرراځم۔ کله چه ده غسل اوکړواوځان ته ئے اوکتل نوښځه ترِنه جوړه شوے وه۔ بیا بل چاته واده هم شوه اوهغه سره ئے اووه کاله تیرکړل۔ په دے دوران کښې دهغه بچی هم

اوشول۔بیاناځاپه یوورځ دے بیادغسل دپاره لاړو۔چه څنګه دغسل نه فارغ شواوځان ته ئے اوکتل نوپه هغه زوړحال کښې بدل شوے وو۔سمدستی کورته راغے۔چه اوئے کتل نوښځه ئے لاهغه شان په مهی پاکولوکښې مصروفه وه۔دده فوراًدمعراج په واقعے یقین راغے،او سمدستی درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشواوایمان ئے راوړو۔

فتاویٰ حقانیه کښې ددے واقعے متعلق لیکلی شوی دی چه:دمعراج په سلسله کښې داواقعه بالکل غلطه اوبے بنیاده ده۔داپه یومعتبرکتاب کښې نه ده راغلے۔البته"جهانګیربک ډپولاهورد"قصص الانبیاء"په نامه باندِ یو کتاب شائع کړے دے چه د هغے مصنف هم نامعلوم دے۔په هغے کښې نورهم وچ اولامده لیکلی شوی دی۔عوامو له دارنګے کتابونه نه دی کتل پکار۔ (فتاویٰ حقانیه،۱: ۱۷۲)

8. **دسیدناابوشحمه رضی اللہ عنہ دزناواقعه:**

ابو شحمه عبد الرحمٰن الاوسط رضی اللہ عنہ د سیدناعمرفاروق رضی اللہ عنہ ځوے دے۔دده په باره کښې دامشهوره ده چه:ده نسیکه نوے یهودی سره شراب اوڅکل،اوبیائے دبنی نجار په باغ کښې یوے ښځے سره زنااوکړه،دَدَے ښځے دده نه یوماشوم هم اوشو۔هغے داماشوم سیدناعمر رضی اللہ عنہ له راوستو،چه داستادځوی نه دے،ابوشحمه رضی اللہ عنہ هم د زنا اقرار اوکړو،چه د هغے په وجه دسیدناعمر رضی اللہ عنہ په حکم باندِ افلح نومے غلام هغه سل کوړے سزاورکړه چه دهغے په دوران کښې ابوشحمه رضی اللہ عنہ وفات شو۔بیا څلویښت ورځے پس خذیفه بن یمان رضی اللہ عنہ په خوب کښې

درسول الله ﷺ زيارت اوکړو، چه ابوشحمه رضي الله عنه ورسره ولاړ دے، اوشنے جامے ئے اچولے دی۔

رسول اللهﷺ دحدقائمولوپه وجه باندِ دَسیدناعمر رضي الله عنه تعریف اوکړو، اوابوشحمه رضي الله عنه هم دَسیدناعمر رضي الله عنه په حق کښې دعااوکړه۔

مفتی شبیراحمدقاسمی ددے قصے په باره کښې لیکلی چه: دادروغ او بهتان دے۔ابو شحمه رضي الله عنه یو متقی او عالم فاضل اوپرهیزکارانسان وو۔هروخت به د الله تعالیٰ نه یریدو۔دے یوورځ دتجارت په غرض مصر ته تلے وو۔هلته ئے د کهجورونبیذاوڅکل۔(کوم چه حلال دی)ده د هغے په وجه نشه غوندِ محسوس کړه،نوفوراً د سیدناعمروبن العاص رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شو او دهغه نه ئے دخپل ځان دقصاص کولومطالبه اوکړه۔ سیدناعمروبن العاص رضي الله عنه په دے وجه دهغه دقصاص نه انکاراوکړو، چه دادحددجاری کولوکارنه وو۔ځکه‌چه دنبیذپه څکلوباندِحدنه جاری کیږی۔دابوشحمه باربار اصرار په وجه سیدناعمروبن العاص رضي الله عنه مجبورشواوهغه ئے په یوبنده کمره کښې قصاص کړو۔کله چه سیدناعمر رضي الله عنه ته ددے پته اولګیده نوسیدناعمروبن العاص رضي الله عنه ته ئے زورنه ورکړه چه تاځماځوی سره ولے رعایت کړے دے، اودےدِدَنوروخلقوپه شان ولے قصاص نه کړو۔نو هغه خپل ځوی له نورے کوړے هم راوبغولے۔دسفر تهکاوټ اوڅه دَپلاردطرفه خفکان شواوڅه بیماری شوه نوددے وجوهاتو له کبله ابوشحمه رضي الله عنه وفات شو۔

(فتاویٰ قاسمیه،۲: ۲۰۹ تا ۲۱۷)

مولاناډاکټرسراج الاسلام صيب ددے روايت متعلق ليکلی دی چه:مولانا اشرف علی تهانوی ليکلی دی چه محدثين دےقصې ته باطل او موضوع وائی۔

(ضعيف اور بے اصل واساس کهانياں:۲٦۹)

## 9. دسيدناعکاشه بن محصن اسدی رضی الله عنه درسول الله ﷺنه دقصاص اخستوواقعه:

علامه سيوطی ليکلی دی چه:کله سورة النصرنازل شونورسول الله ﷺ مهاجراوانصارپه مسجدنبوی کښې راغونډکړل اوورته ئے اوفرمائيل چه: څه تاسو له د الله په نامه قسم درکوم چه په چاباندِماڅه قسم زياتے کړے وی ياځماپه ذمه دچاڅه حق وی نوپه قيامت کښې دبدلے اخستونه مخکښې په دنيا کښې ځمانه بدله واخلے۔

رسول الله ﷺداخبره درے پيرے اوفرمائيله،آخرکښې يوبوډاصحابی سيدناعکاشه بن محصن اسدی رضی الله عنه پاڅيدواواوئے وئيل چه:که چرے تاسودا خبره بيابيا نه وه کړے نومابه ددے جرات نه ووکړے۔بياهغه خپله قصه بيان کړه چه:ديوے غزوے نه دواپسی په وخت ځمااوښه ستاسواوښے سره نزدے روانه وه،نوځه درکوزشوم چه ستاسو خپه ښکل کړم۔په دغه وخت کښې تاسو ځماملاپه چابک اووخله۔کيدے شی چه تاسو خپلے اوښے له چابک وركولواودهغے په ځائےماله راغلے وی۔

رسول الله ﷺورته اوفرمائيل چه څه تاله د الله تعالیٰ واسطه درکوم چه مابه تاله په قصده ګزار نه وی درکړے۔بيا رسول الله ﷺاوفرمائيل چه اے بلاله ورشه اودفاطمے نه هغه نرے اوږدچابک راوړه۔بلال ډير خفګان په حالت کښې په سر باندِلاس يخے دے اوپه لاره کښې په چغوسر

دے چه رسول الله ﷺ خپل ځان قصاص کوی۔کله چه ده دفاطمے نه چابک اوغوښتونوهغے اووئیل چه:ځماپلارپه چابک څه کوی؟داخونه دحج ځمانه ده او نه دجهاد۔کله چه بلال هغے ته خبرورکړونوهغے اوفرمائیل چه داڅوک دے چه ځمادباباجان نه قصاص اخستل غواړی؟اے بلاله ورشه او حسنیانوته اووایه چه تاسودے کس ته اووائے چه دباباجان په ځائے زمونږنه بدل واخله۔سیدنابلال رضی الله عنه چه مسجدنبوی ته چابک راوړو، نو رسول الله ﷺسیدناعکاشه ته په لاس کښی ورکړوچه شابه بدل واخله۔سیدنا ابوبکر رضی الله عنهاوعمر رضی الله عنهچه دامنظراولیدلونو هغوی اوفرمائیل چه درسول الله ﷺ په ځائے زمونږنه قصاص واخله۔رسول الله ﷺهغوی ته اوفرمائیل چه پریږدے۔ الله تعالیٰ ته ستاسوددواړومقام معلوم دے۔بیا سیدناعلی رضی الله عنهاوفرمائیل چه اے عکاشه رضی الله عنه ځما ملا ستا دقصاص دپاره حاضره ده۔ خیردے د دوی په ځائے ماسل درے اووهه، خو د رسول الله ﷺ نه قصاص مه اخله۔رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اے علی رضی الله عنهکینه الله تعالیٰ ته ستا مقام اونیت معلوم دے۔بیاحسنیان پاڅیدل،اوؤئے وئیل چه مونږ دبابا جان په ځائے قصاص کړه۔رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائیل چه اے ځماد سترګو تورو،تاسودواړه کینئے۔ الله تعالیٰ ته ستاسومقام معلوم دے۔

سیدناعکاشه رضی الله عنهعرض اوکړوچه:په دغه وخت کښی ځما ملابربنړه وه، (قمیص مِ نه وواچولے)رسول الله ﷺ هم خپله حلقه دشانه اوچته کړه

چه شابه هم ماله هغه شان ګزارراکړه۔دغه وخت کښې دهر طرف نه چغې شوے چه عکاشه په رشتیارسول الله ﷺ نه بدله اخلی۔کله چه سیدناعکاشه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ شا ښکاره اولیدله اوپه مهرِنبوت ئے نظر پریوته،نو سمدستی ئے ښکل کړو،اواوئے وئیل چه ځماموراوپلار دِپه تاسوقربان وی لاس دِ خاورے شی چه دستاسونه بدل اخلی۔داخومادمهرِنبوت دښکلولودپاره حیله جوړه کړے وه۔رسول الله ﷺاوفرمائیل چه یاخوبدل واخله او یامعافی اوکړه۔عکاشه عرض اوکړوچه په یوشرط معافی کوم که چرے د قیامت په ورځ الله تعالیٰ مامعاف کوی نو،بیارسول الله ﷺاوفرمائیل که چرے څوک په جنت کښې ځما ګاونډی لیدل غواړے نودے بوډاسړی ته اوګورے۔ صحابه کرام رضی الله عنهم پاڅیدل اوعکاشه ئے په تندی باندِ ښکل کړو ۔ اوورله ئے (د جنت) مبارک بادی هم ورکړه۔

(معجم کبیر۲: ۱۹۳ ، حلیة الاولیاء۴: ۷۳)

امام جلال الدین سیوطی دے قصے ته موضوع وئیلے دی۔

(اللآلی المصنوعة۱: ۲۵۷)

حافظ ابن جوزی هم دے ته موضوع وئیلے دی۔

(کتاب الموضوعات۱: ۲۹۷)

مولاناډاکټرسراج الاسلام صیب ددے روایت متعلق لیکلی دی چه:دا قصۍ موضوع اومن ګهړت ده۔

(ضعیف اور بے اصل واساس کهانیاں:۱۸۷)

### 10. درسول الله ﷺ دپاک مخ درنړا په وجه باندِ په تیاره کښې ستن موندل:

حافظ ابن عساکر په تاریخ دمشق کښې لیکلی دی چه: ام المؤمنین سیده عائشه دسیده حفصه نه دګنډلو دپاره ستن واخسته چه درسول الله ﷺ کپړا پرے اوګنډی، نوهغه ددے دلاسه پریوته۔ دے هغه ستن ډیره اوکتله، خواوځ نه مونده۔ په دے کښې ناڅاپه رسول الله ﷺ راغے، نو د هغوی دمخ مبارک په رنړا باندِستن ښکاره شوه۔ ام المؤمنین سیده عائشه چه کله ستن اولیدله نو مسکۍ شوه۔ رسول الله ﷺ هغے ته اوفرمائیل چه: اے حمیرے تاولے اوخاندل۔ هغے عرض اوکړو چه دغه شان چل اوشو۔

هغوی ﷺ په زوره اوفرمائیل چه: تباهی ده، تباهی ده، تباهی ده۔ دهغه چا د پاره چه څوک ددے مخ ددیدارنه محروم شو۔ دهرمؤمن اوکافر داخواهش دے چه هغه ځماديدارا اوکړی۔ (تاریخ دمشق، باب صفة خلقه ومعرفة خلقه ۳ : ۳۱۰)

علامه عبدالحئ لکهنوی ددے واقعے په باره کښې لیکلی دی چه: داد ځان نه یو جوړه شوے قصه ده، چه واعظان ئے درسول الله ﷺ د حسن وجمال دبیان په دوران کښې بیانوی۔ (الآثارالمرفوعة، ۱: ۴۶)



# ❀ دَ موضوع روایاتو فهرس ❀

## مصادر او مراجع


- القرآن الکریم
- الآثارالمرفوعہ فی الاخبارالموضوعہ،مولاناعبدالحئ لکھنوی
الاحادیث المرفوعۃ فی الاخبار الموضوعۃ
- الاسرارالمرفوعہ فی الاحادیث الموضوعہ،علی بن محمدملاعلی القاری
- احسن الفتاویٰ،مفتی رشید احمد لدھیانوی،مفتی رشیداحمدلدھیانوی
- احیاء علوم الدین ،امام محمد بن محمد الغزالی
- ارشادالقلوب،حسن بن حسن الدیلمی
- بدائع الصنائع،علامہ ابوبکربن مسعودالکاسانی
- بھجۃ الاسرار،شیخ علی بن یوسف
- تاریخ بغداد ، ابو بکر احمد بن علی الخطیب البغدادی
- التبیان فی علوم القرآن،محمد علی صابونی
- تحفۃ الاحوذی،ابو العلی محمد بن عبدالرحمن مبارک پوری
- تدریب الراوی،جلال الدین سیوطی
- تذکرۃ الموضوعات،محمدطاہرپٹنی
- تفسیرروح البیان،شیخ اسماعیل حقی
- تقریب التھذیب،احمد بن علی ابن حجرعسقلانی
- تلبیس ابلیس،عبدالرحمن ابن الجوزی
- تنبیہ الغافلین،فقیہ ابو اللیث ثمرقندی
- چند معروف لیکن غیرمستنداحادیث،مفتی صداقت علی
- حلیۃ الاولیاء،ابونعیم الاصفھانی
- رد المختار ، علامہ ابن عابدین الشامی
- سنن ابوداؤد،علامہ ابوداؤد سجستانی
- سیر اعلام النبلاء ، حافظ ذھبی
- شرح مسلم،امام نووی
- صحیح بخاری،محمدبن اسماعیل البخاری
- صحیح مسلم،مسلم بن حجاج
- الضعفاء الکبریٰ،احمد بن یزید
- الضعفاء الکبیر،عقیلی

- ضعیف اور بے اصل واساس کہانیاں،مولانا ڈاکٹر سراج الاسلام حنیف
- طبقات الشافعیۃ الکبریٰ،عبدالوہاب بن علی سبکی
- العقیدۃ الصحیحہ فی الموضوعاتِ الصریحۃ،عمر بن بدرسعیددرانی حنفی
- عمل الیوم واللیلہ،ابن سنی
- غنیۃ الطالبین،شیخ عبد القادرجیلانی
- غیر معتبر روایات کافنی جائزہ۔مفتی طارق امیر خان
- فتاویٰ حقانیہ،کبارمفتیان کرام جامعہ حقانیہ اکورہ ختک،نوشہرہ
- فتاویٰ دارالعلوم دیوبند
- فتاویٰ دارالعلوم زکریا،مفتی رضاء الحق شاہ منصوری
- فتاویٰ عثمانی،مفتی تقی عثمانی
- فتاویٰ عثمانیہ،مفتی غلام الرحمن
- فتاویٰ عزیزی،،مفتی عزیزالرحمن
- فتاویٰ فریدیہ،مفتی محمد فرید
- فتاویٰ قاسمیہ،مفتی شبیراحمدقاسمی
- فتاویٰ محمودیہ،مفتی محمودالحسن
- فتح المغیث ، حافظ السخاوی
- فضائل اعمال ، شیخ زکریا کاندھلوی
- الفوائد،ابوالقاسم تمام بن محمدرازی
- الفوائدالمجموعہ فی الاحادیث الموضوعہ ۔محمد بن علی الشوکانی
- قوت القلوب،ابوطالب مکی
- الکشاف ، الزمخشری
- کشف الخفاء،اسماعیل بن محمد
- الکفایہ،خطیب بغدادی
- لسان المیزان،شہاب الدین ابوالفضل احمد بن علی
- اللآلی المصنوعۃ ، علامہ جلال الدین السیوطی
- الؤلؤالمرصوع فیمالااصل لہ اوباصلہ الموضوع،محمد بن خلیل قاوقجی حنفی
- المجروحین،علامہ ابن حبان
- مجموع الفتاویٰ،احمد بن عبدالحلیم بن عبدالسلام ابن تیمیہ
- المجموعہ فی احادیث الضعیفۃ والموضوعۃ، مولانا ڈاکٹر سراج الاسلام حنیف۔
مختار الصحاح،علامہ جوہری

- مخة المغیث فی علم مصطلح الحدیث۔حافظ احسن المسعودی
- مصباح اللغات۔عبد الحفیظ بلیاوی
- المصنوع ، ملا علی القاری
- المصنوع فی معرفة الموضوع۔ملاعلی القاری
- معجم،ابن عربی
- معجم کبیر ، علامہ جلال الدین السیوطی
- المقاصد الحسنة،محمدعبدالرحمن السخاوی
- المنار المنیف،علامہ محمد بن ابوبکرابن قیم
- مناقب امام اعظم
- منہاج السنة النبویة ، احمد بن عبدالحلیم ابن تیمیة
- الموضوعات،عبدالرحمن بن علی بن محمدابن جوزی
- الموضوعات،حسن بن محمد
- الموضوعات الکبریٰ،ملاعلی القاری
- الموقظة فی علم مصطلح الحدیث، شمس الدین محمد بن احمد الذہبی
- میزان الاعتدال فی نقدالرجال،شمس الدین محمدبن احمد الذہبی
- نجم الفتاویٰ،مفتی نجم الحسن امروہوی
- نزہة المجالس،عبدالرحمن بن عبدالسلام صفوری
- نزہة النظر،علامہ ابن حجر عسقلانی
- نصب الرایة ، عبداللہ بن یوسف زیلعی حنفی
- النکت علی کتاب ابن الصلاح،محمد ابن علی ابن حجر عسقلانی
- الہیئة السیآت فی تبین احادیث الموضوعات ،ملاعلی القاری


❀ تمت بالخیر ❀




## زمونږ چهاپ شوی کتابونه

| نمبر شمار | د کتاب نوم | ليکونکي |
|---|---|---|
| ۱ | العرائض فی الفرائض | قاضی خلیل الرحمٰن انور حقانی عظیم زیٔ |
| ۲ | الخير الكثير فی مقدمة التفسير | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۳ | تلخيص المنطق | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۴ | القرطاس الصميم | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۵ | بدرالسماءفی قراآت العشرة الكبرى | قاری عباس احمد محمدی |
| ۶ | الاغطيةالمكشوفه عن الحديث الموضوعة | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۷ | تجويد القرآن | قاری ضیاء اللہ عظیم زیٔ |
| ۸ | فتاویٰ ادينيه (زيرطبع) | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۹ | تاريخ ادينه (زيرطبع) | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۱۰ | باقات الادب (زيرطبع) | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۱۱ | التحفة الرحمانيه شرح المقدمة الجزرية | قاری عباس احمد احمد محمدی |
| ۱۲ | الكلمات الخيريه فی التحقيق الاصوات اللغوية | قاضی محمد فاضل عظیم زیٔ |
| ۱۳ | تحفة الطلبه ( زير طبع) | قاری حافظ ساجد علی ادینوی |

